



* **تعميي او تاريخي مادې په پښتو ادب کي**
* ښېړنه: **د محمد معصوم هوتک**

* خپروونکی: **علامه رشاد خپرندویه ټولنه**
* کندهار – افغانستان
* تلیفون : ۰۷۰۰۳۲۶۰۱۱
* ایمیل: mrohyal@yahoo.com

* کمپوز او ډیزاین: **روهیال کمپیوټر اداره**
* لومړی چاپ: ۱۳۹۱ ش – ۲۰۱۲ع
* کچه: ۱۳/۵۰ × ۲۱ سانتي متره
* چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه
* د مخونو شمېر : ۲۰۸
* د خپرونو لړ : ٦٨

# د خپرونکي خبري

معما د ادبي فنونو په کتار کي هغه صنف دئ، چي ويونکی ئې د لوستونکي د سرګرمه کولو له پاره استعمالوي. په معماوو کي د صريحو او واضحو کلماتو پر ځای د پېچلو او داسي مغلقو کلماتو له استعماله کار اخيستل کېږي، چي د پوهېدلو له پاره ئې لوستونکی فکر او دقت ته اړتيا لري.

پښتو ادب چي د شرقي ادبي صنايعو څخه مالامال دئ، يو هغه ئې هم د معما پېچلی او سخت صنعت دئ، چي د دې ادب د سرلارو پخوانيو او اوسنيو له خوا په خورا مهارت کار ځني اخيستل کېږي. د پښتو ادب په پخوانيو دېواني آثارو کي خوشحال خان خټک يو ماهر او په دغه فن پوه استاد دئ، خوشحال د خپل انتقادي روش له مخي د پخوانيو معماويونکو پر معماوو ځکه انتقاد کړی دئ، چي د ده په وينا هغوی د دغه باريک او خورا پېچده علم په راز او رمز پوه نه ول. د ده په دېوان کي د معما خورا ډېري نمونې سته، چي تاسي به ئې په حاضره مجموعه کي مطالعه کړی.

تر خوشحال را وروسته د ده په کورنۍ کي دې صنعت ته خورا ډېر کار سوی دئ، د خټکو تر لويي فرهنګي کورنۍ چي راووزو د پښتو ادب نورو پوهانو او شاعرانو هم په دې برخه کي خپل بخت ازمويلی دئ، او تر خپله وسه ئې د خپل ذهن او استعداد په اندازه د معما جوړولو نيلی ځغلولی دئ.

حاضره مجموعه په پښتو ادب کي د معما ويولو پر فن ليکل سوې ده. دغه اثر دوې خاصي ځانګړتياوي لري، يوه ئې دا ده چي تر دې دمه په دې عرصه کي د معما يو ځای کولو کوښښ نه دئ سوی، د دې اثر ښاغلي څېړونکي استاد محمدمعصوم هوتک کوښښ کړی دئ، چي د پښتو ادب ټول هغه شاعران

راوپېژني چي د معما په اړخ کي ئې پښتو ادب ته لږ و ډېر څه ورکړي دي. خو تر دې بله ښه ځانګړتیا ئې دغه ده، چي د کتاب لومړی څپرکی د معما پوهني او معما څېړني تیوریکي بحث ته ځانګړی سوی دئ. نو ویلای سو، چي په پښتو ژبه کي په دغه کمیت او کیفیت د معما په باب کار نه وو سوی، او دا لومړی اثر دئ، چي دغي موضوع ته ځانګړی سوی دئ.

موږ د دې اثر ښاغلي څېړونکي او د پښتو ژبي محتاط محقق استاد محمد معصوم هوتک ته د دغه اثر د لیکلو له امله مبارکي وایو او د لویه خدایه غواړو چي د پښتو ژبي او ادب په عرصه کي دي د استاد قلم همداسي روان او جاري وي، پښتو دي خدای د دغسي خدمتګارو او مستحقو استادانو له قلمه نه بې برخي کوي.

مطیع الله روهیال
د علامه رشاد خپرندویه ټولني مشر
۱۸/ زمری/ ۱۳۹۱ش

## د کتاب د پیل تاریخي قطعه

ما چې نیت د دې کتاب د کښلو وکړ
"قلم" وویل "خدمت" ته یم تیار
"اراده" سوه وار خطا "هل" ځني وخوت
ول: توکل کړه، په ژوندنسته اعتبار

حل:

د تکملې عمل: (قلم = ۱۷۰) + (خدمت = ۱۰۴۴) = ۱۲۱۴

د تخرجې عمل: (اراده = ۲۱۱) - (هل = ۳۵) = ۱۷۶

د دوهمې تکملې عمل: ۱۲۱۴ + ۱۷۶ = ۱۳۹۰

* * *

د دې کتاب په لیکلو مې د ۱۳۹۰هـ ش کال د لېندۍ (قوس) پر شپاړسمه = د ۲۰۱۱ع کال د ډسمبر پر اوومه د چارشنبې په ورځ په اوشاوا، انټاریو، کاناډا کې پیل وکړ او د همدې کال د ډسمبر میاشتې پر اووه ویشتمه (د مرغومي (جدي) پر شپږمه د سه شنبې په ورځ د سهار پر اته نیمو بجو مې پای ته ورساوه. د بشپړېدو قطعه مې په پای کې راوړې ده.

* * *

# فهرست



## لومړی څپرکی

## دوهم څپرکی

## دریم څپرکی

## څلرم څپرکی

باسمه تعالی

دانشـمند د معـما په عـلم پوه دی
د ابجد په حساب څه خبر نالوستی
(خوشحال خان خټک)

**په پښتو ادب کي د تاريخي نېټو او تعميو څرګندونه دومره زياته نه ده. زموږ فاضل استاد علامه رشاد رحمة الله عليه هغه شاعران چي په مؤلفاتو کي ئې د ابجد په حساب تعميې او تاريخي نېټې راغلي دي "يونس، خوشحال خان، کاظم خان شيدا، ميرزاحنان بارکزی، عليخان اشنغری، بېدل، ملا مير يحيی، اخوند کبير، بوعليشاه، عبدالقادرخان خټک، دولت لواڼی، طالب رشيد، صدرخان خټک، فهيم، افضل خان خټک او فدا محمد شيرزاد" او"حاجي جمعه بارکزی" راښوولي دي[1].**

**د دغو شاعرانو په کلام کي د راغلو تعميو او تاريخي مادو ثبت په بېلا بېلو خطي او چاپي نسخو کي دومره متنوع او رنګارنګ دئ، چي زه ئې د دې کتاب کښلو ته وهڅولم. د دغه رنګارنګ ثبت د ملامتی اوله ګوته خو**

---

[1] وګ: د حاجي جمعه بارکزي د دېوان سريزه: ۷ مخ. ما پر دغو يادو سوو شاعرانو برسېره د نورو پښتنو ليکوالو او شاعرانو کتابونه هم پر کتلي او د خپل مطلب مواد مي ځني راټول کړي دي.

له معمول سره سم کاتبانو ته نیول کېږي. خو په څنګ کې ئې د چاپي دېوانو د ترتیبوونکو مسئولیت هم د هېرولو نه دئ. زما په ګډون زیاترو مصححینو د شاعرانو د کلام په ثبت کې لازم دقت نه دئ کړی.

ما په دې حاضر کتاب کې د پښتو ادب له هغو آثارو څخه چې ما ته ئې د کتلو موقع برابره سوې ده، تاریخي مادې او تعمیې رااخیستي دي او په ثبت کې مي تر خپله وسه پوري لازم دقت کړی دئ.

دا کتاب به د هغو محققینو او د پوهنتونو د محصلینو کار اسانه کړي چې د څېړني په جریان کې د دغو تاریخي نېټو او تعمیو د لوستلو او پر هغو باندي د استناد کولو اړتیا محسوس کړي. دوی به مجبور نه وي چې د شاعرانو او لیکوالو دېوانونه او آثار پاڼه په پاڼه وپلټي.

څرنګه چې دا کتاب د تعمیو بحثونه لري، نومي د کتاب د شروع کولو او بشپړولو تاریخونه هم په معماوو کي ولیکل. هیله ده زما دا خواري او مېنود د یو چا په درد وخوري. د تېروتنو په صورت کې د دوستانو د نظرونو لار څارم.

محمدمعصوم هوتک

۲۷ ډسمبر ۲۰۱۱ع

اوشاوا – انټاریو – کاناډا

# لومړی څپرکی

**د پیل خبري:**

پښتنو ته د پوهي او علم کاروانونه د شمال، شمال ختیځ او لوېدیځ پر لار راغلي دي. وروسته دوی په خپله له دغو علمي کاروانو سره یو ځای او کله کله لا د کاروانو په مخ کي جنوب ته سفرونه کړي او د پوهني روڼاوي ئې هورې خپرې کړي دي. له جنوب څخه په راستنېدلو کي هم تش لاس نه دي راغلي او ښه پوره توښه ئې ورسره راوړې ده. د دغي راکړي ورکړي په نتیجه کي هنري و فرهنګي، مذهبي و دیني توښې له یوه ځایه بل ته انتقال سوي دي او د دغي فرهنګي تبادلې له اسیته د دې سیمي په نورو ژبو کي ښه مغزنه خو په پښتو کي یو څه غنیمت زېرمه په میراث پاته سوې ده. د فرهنګي زېرمو لومړنیو ایجادوونکو د پوهي په حاصلولو کي هغه علمي نصاب پاللی وو، چي محتوی یا په ننني ژبه، منځپانګه ئې له دودیزو علومو او په تېره بیا دیني او مذهبي پوهنو څخه جوړه سوې وه. ادبي ایجادیات مو هم د دغو پوهنو لرونکو پوهانو پر لاس منځ ته راغلي دي او طبیعي ده چي د دغو ایجادیاتو په منځ ته راتګ کي د عربي او پارسي ژبو اغېزه بېخي ډېره څرګنده ده. دغه ایجادیات زموږ د اوسنۍ ادبي ودانۍ تاداوونه دي. موږ که هر راز علمي و ادبي ودانۍ جوړوو، یا مو جوړه کړې ده، تاداو او بنسټ ئې هماغه دئ، چي بیان مو کړ. د دغه تاداو هراړخېزه څېړنه پراخه ده او زه ئې یوازي د ادبي او شعري برخي پر یوه فني اړخ یو څه رڼېږم.

پښتنو شاعرانو چې موږ ته کومه کتبي زېرمه راپرې ایښې ده، د هغې په تانسته کې هغه مواد کار سوي دي چې شاعرانو له عربي او ګاونډیو ژبو څخه رااخیستي دي. د دغي زېرمې شننه او څېړنه د دغو موادو له پېژندني، پوهېدني او زده کېدني پرته ممکنه نه ده. د دغي اړتیا له اسیته زموږ په دودیزو نصابو کې د دغو پوهنو تدریس ته زیاته پاملرنه سوې وه او د ادبیاتو څانګه مو هم د دغه نصاب له چوکاټ سره عیاره سوې وه. زموږ د ادبیاتو طالب العلمانو عروض و قافیه لوستله او بدیع و بیان ئې زده کاوه. زموږ په پښتو شعر کې د پخوانیو ادبي ژانرونو کارول د شاعر په ادبي کمالاتو کې ګڼل کېدله. د ادبي فنونو د اوج زمانه په فارسي او پښتو ادب کې د هندي سبک د پیاوړتیا همزولې ده. دغه سبک په هندوستان کې د مغولي شاهانو په دوره کې او په پارس کې د صفوي واکمنانو په زمانه کې ډېر پیروان وموندل.

کله چې پښتنو ته د معاصرو پوهنو اروپایي آثار د لوی هندوستان له لاري د استعماري قوتونو پر لاس د دوی د استثماري اهدافو په خاطر راورسېدل، زموږ پر تدریسي نصاب خو ئې اغېزه وکړه، مګر د دغه نصاب اصولو ته ئې ډېر بدلون ورنه کړ. په افغانستان کې د معاصري ښووني لومړي ګامونه په سراجي عصر کې د حبیبیه مدرسې په جوړولو سره پیل سول، نو د دغي مدرسې په تعلیمي نصاب کې پر نوو پوهنو سربېره زاړه مضامین هم شامل ول. مولوي صالح محمد هوتک (۱۳۳۹ش مړ) چې د دغي مدرسې طالب العلم او لومړی پښتو ښوونکی وو، د مدرسې په نصاب کې شامل مضامین داسي رانښیي:

ګـوره فـضل د سـبحان ــــ پـر مـوږ سـوی بې پایـان
ښـه امیـر ئـې دئ راکـړی ــــ پـــر رعیتـــو مهربـــان

مدرسه ئې بِنا کړې | پکښې لولي هَلوکان
د دې نوم حبيبيه دئ | پاک الله دې سي پاسبان
مضامين ئې دا دي وروره | چې زې تا ته کړم عيان
اول سر ئې دينيات دئ | چې دين ټول سي په روښان
تجويد علم ئې دويم دئ | چې صحيح لولي قرآن
عربي او فارسي دواړه | عجم سوه عرَبيان
پښتو ښه ئې وايي کابليان | پښتو خپله پښتو راغله
تاريخ علم هم پکښې دئ | خصوصاً بيا د افغان
نقشه جات واړه په لولي | د انګرېز هم د جاپان
د حساب علم اتم سو | پر طريق د انګلستان
نهم خپل رقوم سياق دئ | چې همه سي ميرزايان
لسم کار ئې مشاقي ده | ټوله دي خوشنويسان
انګرېزي و اُردو واړه | سو جواب د هندوستان
قواعد او ورزش ګوره | هر هلک ئې پهلوان

**په دې نصاب کي د نورو عصري پوهنو پرځنګ (تجويد، سياق، مشاقي، ...) هم شامل ول.**

**په برتانوي هندوستان کي د استعماري خوځښتونو تر اغېزې لاندي په دغه پراخه سيمه کي خورا غښتلې استعماري او اروپايي ضد روحيه واکمنه سوه. د دغي سيمي منورينو له استعمار سره د ضديت له اسيته ټولو اروپايي ارزښتونو ته په کرکه کتل او هغه ئې له خپلو ملي او اسلامي ارزښتو سره په تضاد کي ګڼل. دا روحيه هغه وخت لا پياوړې سوه چې د اسلامي خلافت مرکز ترکيه د دغو استعماري ځواکونو تر يرغل لاندي کمزورې سوه او د اسلامي خلافت مرکز ئې کمزوری او ورپسې له منځه يووړ. دې کار په سيمه کي اسلامي ارزښتونو ته خطر توليد کړ او په**

عکس العمل کي ئې د دوديزو افکارو څښتنانو ډله پياوړې کړه. د هند د لويي وچي پر خپلواکي غوښتونکي خوځښت باندي هم د دغه مذهبي ذهنيت اغېزه زياته برجسته سوه. ديني علماوو، مذهبي پېشوايانو، روحاني حلقو ټولو د اروپايي استعماري قوتونو په مقابل کي بيرغي پاڅونونه وکړل او توري ته ئې لاس واچاوه. د مذهبي او اسلامي ذهنيت دغي برلاسي يو بل کوچنوټی قشر د ځان له پاره خطر وګاڼه. دا قشر د هغو منورينو ډله وه چي د خپل هيواد اعتلاء ئې په نوو افکارو، د مدنيت په نوو انکشافاتو او د عصريت په نوو مزاياوو کي ليدله. البته د دغه قشر منځ ته راتګ د هغي مذهبي تنګ نظری لازمي نتيجه وه چي ځينو افراطي متعصبينو د ټولو نويو او مدني پديدو په مقابل کي ښووله.

په شعري دنيا کي د هندي سبک تر کمزوره کېدلو وروسته په شعر کي د ادبي صنايعو او د هغو په لړ کي د معما جوړولو او تاريخي مادو ويلو دود ته هم پاملرنه لږ سوه. دا نه پاملرنه دې اندازې ته راکښته سوه چي د ايران د معاصر ادب يوه مخکښ استاد جلال الدين همايي وليکل چي: "ساختن معما و حل کردن آن جز تلف کردن وقت و بيهوده کاری نتيجه ای ندارد و تنها به درد کسی می خورد که بيکار در گوشه ای مثل زندان افتاده باشد"[1].

د سياسي، اجتماعي او فرهنګي کشمکش دغه لړۍ زموږ تر زمانې پوري راوغزېدله او زموږ د ټولني منورينو ته ئې د مذهبي افراطيونو د افراطي اعمالو د غندني پر ځای، له ټول پښتواني ژوندوژواک، پښتواني علم و فرهنګ، پښتواني دود و دستور، پښتواني شعر و ادب سره د مخالفت روحيه ورکړه. دا روحيه چي کله د (نوي و زاړه) تر منځ د مجادلې په نامسم تعبير ورنګول سوه، نتيجه ئې دا راووتله چي زموږ تعليم يافته وو هري پښتوانۍ

---

[1] همايی جلال الدين؛ فنون بلاغت، تهران ج ا، ص ۳۴۰، د انټرنيټ پاڼو په حواله.

حادثې ته په انقلابي توګه شا وګرزوله. زموږ منورينو عربي ژبي ته په قصدي توګه په کږه سترګه وکتله. د پخوانيو ادبي علومو زده کړه ئې د وخت ضياع او د ارتجاع نخښه وبلله. دې ناوړه ذهنيت په افغانستان کي د ثور تر پاچاګښتی وروسته خورا بې جلوه زور واخيست او په نوو ادبي او ژبنيو علومو ځينو سمبالو ماهرانو په وياړ سره وويل چي نور د ارتجاعي ساينس فورمولونه دلته ځای نه لري، موږ مترقي ساينس رواجوو. د دغه انحطاط په اندوخر کي پښتون لالا تر بل هر چا مخ ته ولاړ او ځينو خو لا په وياړ سره اعلان وکړ چي: "غزل ته ئې طلاق ورکړ او پر ځای ئې نوی شعر باب کړ". د پوهنتونونو له نصاب څخه د عروضو، قافيې، بديع او بيان تدريس وايستل سو. دا کار ئې د خپل مترقيت په اثبات کي د فخر وړ وباله.

د دې انحطاط ناوړي نتيجې ډېر ژر موږ په دا خپلو ګناهکارو وليدلې. اوس په ټول هيواد د ګوتو په شمېر داسي کسان سته چي د پخواني ادب او پخوانيو متونو په تدريس کي دي کار ځني واخيستل سي او هغه هم د بوډاتوب څپېړو پر مخ وهلي دي.

زه چي کله کله له ځان سره د دغي دورې پر نتايجو باندي فکر وکړم، وارخطا سم چي زموږ د تاريخ، ژبي او ادب راتلونکي متخصصين به په دغه منحط فکر او پروګرام سره څنګه وتوانېږي چي له پخوانيو اول لاس مدارکو څخه استفاده وکړي.

تر دغو مقدماتي خبرو وروسته به په دې څپرکي کي پر تعميه، ابجد او د معماوو پر ځينو اړوندو اصطلاحاتو وږغيږو.

# تعمیه معما

تعمیه په لغت کي "ړندولو او پوښلو" ته وايي (غياث). په ادب کي معما ويلو ته ويل کېږي. د ادب په اصطلاح کي مُعَما هغه کلام ته ويل کېږي چي په هغه کي يو نوم، نېټه يا يو مطلب د رمز او ايما په شکل راوړل سوی وي او په څرګند ډول نه وي بيان سوی خو په دغه پټ او مرموز بيان کي شعريت او له سليم ذوق سره برابرول او د ناوړو اوږدو الفاظو څخه ځان ژغورل ئې لوی شرط دئ. په معما کي يو مطلب پټ بيانېږي او له دغه پټ حالت څخه راايستل ئې د قلب، تشبيه، تصحيف، د ابجد حساب (جُمَل) او نورو عمليو له لاري سر ته رسېدلای سي.

د معماوو په جوړولو کي د کلماتو ليکني شکل ته اعتبار ورکول کېږي او د تورو وينګ په پام کي نه نيول کېږي. دغه سبب دئ چي په معماوو کي د راغلو کلماتو حرکتونه (زور، زېر، پېښ، مد، تشديد، تخفيف او نور سکنات) د اعتبار وړ نه دي. د معماوو تورو (حروفو) اساس يا (ماده) او د دغو تورو مخ و شا ته کولو او اوړلو ته د هغو شکل او صورت ويل کېږي.

د معماوو جوړولو عمليې درې ډوله دي:

هغه عمليې چي د معما د (مادې) د حاصلولو (تر لاسه کولو) له پاره کارېږي، تحصيلي عمليه نومېږي، هغه چي د معما د شکل و صورت د بشپړولو له پاره کارېږي، تکميلي عمليه او هغه چي نه د معما په (ماده) او نه ئې په (شکل و صورت) کي کارېږي بلکي کار ئې يوازي د معما د حلولو

اسانه کول وي، تسهیلي عملیه نومېږي. په تسهیلي عملیه کي انتقاد، تحلیل، ترکیب او تبدیل راتلای سي.

د ابجد په تورو سره د تاریخي نېټو له بیانولو څخه یو هدف دا وو، چي په نېټه کي د تېروتني امکانات رالږ کړي. یوازي په عدد که کومه نېټه ولیکل سي، د غلطیو امکان ئې زیات وي خو که پر څنګ ئې نوموړې نېټه په تورو سره هم ولیکل سي، د اعتبار درجه ئې لوړېږي. دغه سبب دئ چي زموږ په پخوانیو اسنادو کي په تورو سره د سنو او نېټو لیکل باب ول. په حسابي او حقوقي سندو کي به، چي په پارسي ژبه به لیکل کېدل او اوس هم لیکل کېږي، کله د کوم عدد یا رقم د لیکلو اړتیا پېښه سوه، نو به ئې د هغه عدد (مناصفه) ورسره لیکله. د مثال په توګه: "... مبلغ پنجاه هزار و هشت صد و دوازده روپیه که مناصفه آن بیست وپنج هزار و چهارصد وشش روپیه میشود، از درک ...". په دې ډول به په ارقامو کي د غلطیو امکان لږېدلی.

په سنو او کلونو کي به له شمسي سنو سره د هغو معادِل قمري سنې راوړل کېدلې. "در سال یکهزار و سه صد و نودویک هجری شمسی که مطابق آن یکهزار و چهار صد وسی و سه هجری قمری میشود،...".

په ابجد تورو کي د کلونو او نېټو له ویلو څخه مراد همدغه د غلطیو مخنیوی وو.

له معماوو څخه پر یوه ادبي مشغولا سربېره د وخت د واکمنانو له خوا د مکتوبونو او فرمانونو په لیکنه کي د (شِفر) په توګه هم کار اخیستل کېدی. دغه راز مکتوبونو اوفرمانونو ته (معمانامه) ویل کېدله.

# د معماوو او تاريخي مادو شکلونه

معماوي درې ډوله دي:

**تبديلي معما**:

په دغه معما کي يوه کلمه راوړل کېږي خو مراد په کومه بله ژبه کي د هغې معادِله کلمه (معنا) وي. د مثال په توګه (لمر) کلمه په معما کي راوړل سوې وي، مګر مطلب ئې (شمس) کلمه وي.

**عددي معما**:

د ابجد له تورو او نورو عددونو سره تړلې وي.

**حروفي معما**:

د تورو له يو ځای کولو، قطع کولو، ايسته کولو او اټکل و ګومان کولو سره تړلې وي.

په پښتو ادب کي چي کومي معماوي او تاريخي مادې زما په ستر ګه سوي دي، د هغو جوړښت په دې ډول دئ:

**وچ کلک بې معنابې مفهومه کلمات**:

د دغه راز کلماتو څخه تاريخي مادې جوړول په خوشحال خاني ادبياتو کي ډېري موندلای سو.

خوشحال خان خټک او د ده د کورنۍ غړو دغه راز تاريخي مادې په نظمونو کي راوړي دي. (غفا = ۱۰۸۱هـ ق)، (حصغ = ۱۰۹۸هـ ق)، (غفو = ۱۰۸۶هـ ق) او نور چي تاسي به ئې وروسته نور مثالونه هم ولولی.

په پارسي ادب کي هم د دغه راز تاريخي مادو مثالونه سته چي يو مثال ئې د بلخي ابن سينا د زېږېدلو، د علومو د کسب او مړيني قطعه ده:

حجـــة الحـــق ابـــو علی ســـينا
در "شـجع" آمـد از عـدم بـه وجـود
در "شـصا" کـسب کـرد علـوم (را)
در "تکـز" کـرد ایـن جهـان بـدرود

**د "شجع" ابجدي ارزښت (۳۷۳هـ ق)، د "شصا" دا (۳۹۱هـ ق) او د "تکز" ابجدي ارزښت بيا (۴۲۷هـ ق) دئ.**

## ساده عددونه:

**د دغه راز تاريخي مادو مثالونه په پښتو ادب کي زيات دي. دولت لواڼی د ميرزا خان انصاري د مړيني پېښه په بيت کي داسي راوړې ده:**

د دکن په جنګ شهيد شو خوشنود او سه
په تاريخ د زرخلـو ښت د ده ګـــذر وو

**نور مثالونه به ئې پر خپل ځای ولولی.**

## ساده توري:

**ځيني تاريخي مادې د الفبې له ساده تورو څخه جوړې سوي وي او که د هغو تورو ابجدي ارزښتونه سره جمع سي، مطلوبه سنه ځني راوزي. په مثال کې د دولت لواڼي دغه تاريخي قطعه راوړو، چي د رشيدخان روښاني د مړيني کال پکښې ښوول سوی دئ:**

زړه مـي نـه کـه پـه بېلتـون د اشـنا صـبر
پـــه فـــراق بـــه ژاړم لکـــه ابـــر
رشـيد خان د ټـول صـاحب تـر جهـان تيـر شـو
ښايـــسته صـــورت ئـــې ونيـــو وطـــن قبـــر

**او د مړيني نېټه ئې دا ډول بيان کړې ده:**

که تاريخ حساب ئې غواړې له ابجده
په دا حــرف غين و نون، ح و کـړه صبر

(غ = ۱۰۰۰) + (ن = ۵۰) + (ح = ۸) = ۱۰۵۸هـ ق.

**ادبي تلازمات**:

په ځينو معماوو کي له پېښي سره په ارتباط کي داسي کلمات غوره کېږي چي له اصلي حادثې سره تلازم ولري. د مثال په توګه پر کندهار باندي د افشار نادر بخوله (فاجعه) د پارس واکمنانو ته د خوشالۍ پېښه وه او هغوی ئې تاريخي ماده (الخير فی ما وقع = ۱۱۴۸ هـ ق) ومونده. پر پښتنو باندي دغه کال د درنو مصيبتو او فاجعو پيل وو، ځکه ئې (لا خير فی ماوقع = ۱۱۴۸هق) وباله. په دواړو مادو کي له پېښي سره د راغلو کلماتو تر منځ تلازم ستره.

**ښايسته ترکيبونه**:

په ځينو معماوو کي له اړوندي پېښي سره مناسب ښکلي ترکيبونه راوړل کېږي. لکه د ارواښاد ريشاء د مړيني په نېټه کي چي ما (هوتک) ويلې ده:

د مـرګ و کـال تـه مـې کچکـول د هنـر وګـرزاوه
پـه صـد قاتو يـې پَلَـه درَنـه د ښـو وختـه
"قلم" خپل سر وروباخښه "محبت" تاج کړ هديـه
د مـرګ نېټـه يـې "غـم"، "ژړا" پـه ابجـدو وختـه

حل:

( ق = ۱۰۰) + (م = ۴۰) + ( غم = ۱۰۴۰) + (ژړا = ۲۰۸) = ۱۳۸۸ش

**د کلماتو اعجاز**:

د معماوو ماهران د کلماتو په انتخاب کي له فوق العاده مهارته کار اخلي. داسي کلمات، آيتونه، مقولې او له اعجازه ډک ترکيبونه راوړي چي له يوې خوا له ټاکلي موضوع سره ادبي التزام لري او له بلي خوا ئې د ټاکلي

پېښې نېټه یا د ټاکلي شخص نوم هم له یو لړ محاسبو او تبدیل و تصحیف و تکمیل و تخریج  وروسته لوستونکي ته په لاس ورکړي. د (الخیر فی ما وقع) او (لاخیر فی ما وقع) مثالونه تاسي لوړ ولوستل.

علامه حبیب الله قندهاري مشهور په حبو اخندزاده د امام غزالي رحمة الله علیه منهاج العابدین په پښتو نظم ژباړلی دئ. د دغي ژباړي نوم ده په خپله (معراج السالکین) یا (اخلاق التائبین) ټاکلی وو. د دغه دوهم نامه له ابجدي ارزښت څخه د کتاب د ژباړي کال (۱۲۳۶هـ ق)راوزي[1]. دی د کتاب په پای کي وایي:

| | |
|---|---|
| کتـاب شـکر دئ تمـام شـه | نـا آرام خـاطر آرام شـه |
| نـوم ئـې ښـایي چـي تعین | شـي معـراج الـسالکین |
| یـا "اخـلاق التـائبین" شـي | چي تـاریخ ځني مبین شي |
| مکتـوبي حرفونـه یـاره | لـه دوهمـه اسـمه شـماره |
| پـه حـساب د ابجـد | کـړه معلـوم د دوی عـدد |
| تېـر کلونـه لـه هجرتـه | په دا شمار وو نېک سیرته |

(۲۷۷ مخ، د ۱۳۴۰هق چاپ، لاهور)

لکه تاسي چي به ئې وروسته ولولی مولوي صالح محمدهوتک د خپل خدای بخښلي نیکه د مړیني ماده (جد مغفور) کي موندلې ده چي د تاریخي مادې کلمات په مهارت سره انتخاب سوي دي.

میرزا حنان بارکزي یوه قطعه ویلې ده چي په هغې کي ئې داسي کلمات اوډلي دي چي هم ئې معناوي او مفاهیم سره نزدې دي او هم ئې ابجدي قیمتونه. قطعه داسي ده:

پـه عـدد د ابجـد بـه درتـه وایـم
یـو څـو چیـزه برابـر دي پـه حـساب

[1] په دغه نامه کي تر (ب) دمخه همزه په حساب کي نه راځي.

که "کشمش" دي که "نخود "[1] په حساب یو دي
هم "بنگي" او "ملحد" یو دئ په دا باب
د "دراز" و د "بې عقل" عدد یو دئ
هم "کاکل" و "گژدم" یو، مه کړه عتاب
د "عدو " او د "سگ" یو رنگه عدد دئ
"خواجه سرا " او "خرسیاه" سره تناب
هم "صهبا " او "پیاله می" په یوه رنگ دي
"قلعه"، "برج" هم برابر په دا اسباب
په حساب کي دغه "لوک" او "مایه" یو دئ
هم دغه رنگ برابر "سهو "، "حساب"

(دېوان: ۲۰۱مخ، د ۱۳۸۸ل چاپ)

**د افغانستان د میدان وردگو ولایت یو کلی (رشیدان) نومېږي. د دې کلي اوسېدونکي هغه هوتک دي چي د نادر افشار په تاړاک کي ئې نیکونه او پلرونه فارس (اوسني ایران) ته شړل سوي او د دوی اولاده د امیر عبدالرحمان خان په پاچهي کي بیرته وطن ته راستانه سوي ول. د هغه وخت دولتي واکمنو هغو کسانو ته ښه نظر نه درلود چي د امیر عبدالرحمان خان د حریف غازي محمدایوب خان په پلوي ئې توري وهلي وې. په دغو کسانو کي خپل پلرني هیواد ته دغه راستانه سوي مهاجر هم شامل ول. دغي ډلي له هوتک توب څخه انکار وکړ او خپل ځانونه ئې په قوم**

---

[1] کشمش او نخود تل یو ځای د وچي مېوې په توگه خوړل کیږي.
په دغه قطعه کي د راغلو کلماتو ابجدي ارزښتونه داسي دي:
کشمش = نخود = ۶۶۰، بنگي = ملحد = ۸۲، دراز = بې عقل = ۲۱۲، کاکل = گژدم = ۷۱، عدو = سگ = ۸۰، خواجه سرا = خرسیاه = ۸۷۶، صهبا = پیاله می = ۹۸، قلعه = برج = ۲۰۵، لوک = مایه = ۵۶، سهو = حساب = ۷۱.

(رشیدان) وبلل[1]. تر دغه نوم اړوني وروسته دوی ته پر همدا اوسنۍ مېنه باندي د مېشته کېدلو اجازه وسوه. یوه باریک بین او نکته سنج تن د دغو دوو نومونو تر منځ رابطه داسي موندلې ده:

قوم راشیدان = ۷۱۲

مفقود هوتکان = ۷۱۲

یا:

مفقود هوتکیها= ۶۷۷

قوم راشیدیها = ۶۷۷

## مطائبات:

په ځینو معماوو کي مطائبات د طنز و مزاح په شکل کي کلمات راوړل کېږي. د دغه ډول معماوو مثالونه په پښتو ادب کي زما په سترگه سوي نه دي خو د هرات مشهور شاعر حاجي اسماعیل گوزک دغه راز تعمیې په پارسي ژبه ویلي دي، چي یوه ئې دا ده:

| | |
|---|---|
| شـــد شـــهد مـــاده تـــاریخ او | هست ای گوزوک شهید کیر خر |
| گر ترا تاریخ شمسی آرزوست | بیـت ثـانی شـد معمـای دگـر |
| تـای تـف رابـررخ زاهـد فگن | پـس بمـالش سر سراپای ذکـر |

(شاعر آزاد: ۱۸۳مخ، چاپ ۱۳۴۸ ق)

دا تاریخي ماده د هرات د هغه وخت د والي پر وژلو ویله سوې ده. شاعر له دغه والي سره خورا زیات مخالفت درلود. د معما حل داسي دئ:

د (تف)، (ت = ۴۰۰) که د زاهد پر مخ (ز = ۷) ولوېږي، (۴۰۷) لاس ته راځي. دغه حاصل چي د (ذکر) پر سر و پښو (ذ = ۷۰۰) + (ر = ۲۰۰) = ۹۰۰ د (بمالش) په قرینه ور زیات سي (۱۳۰۷ش) کال ځني جوړېږي.

---

[1] د پښتو په ځینو لهجو کي (رشیدان) د (راشیدان) په بڼه هم تلفظ کېږي او د کلمې د لومړي توري زوَر (فتحه) په الف سره اوړي.

**ما يو وخت له يوه ظريف پښتانه سره په پښتو ادب کي د دغه راز معماوو پر سته والي خبري کولې. ده راته وويل چي خوشحال خان دغه راز معما ويلې ده او په مثال کي ئې دا بيت ووايه:**

يو مي يار دوهم گلزار ساز و ساقي شته
نن مي کـــــومه اند يښـــنه له غين و ميمَ

**له دې معما څخه خو د خوشحال خان مراد (غم) دئ مگر زما مخاطب پښتانه (غين) آلت مخصوص او (ميم) مقعد وګاڼه. ما په جواب کي ورته وويل چی دغه مطائبه به نو ستا په حساب کي ثبت کړو، نه د خوشحال.**

٭٭٭

# معما په لوېديځو ادبياتو کي

**په انګرېزي کي معما ته** (Riddle) **وايي او په دائرة المعارفونو کي ئې د دغه نامه تشريح داسي کړې ده چي:**

(Riddle) **هغه عبارت، پوښتنه يا جمله ده چي دوه رازه معناوي ولري يا ئې معنا ځرګنده نه وي او پټه وي. په لرغوني انګرېزي شعر کي معماوي په پراخ ډول ترسترګو کېږي. ويل کېږي چي د انګرېزي شعر معماوي تر زياتي اندازې پوري دانګلولاتين ادب** (Anglo – Latin) **يوه عنعنه ده چي د هغې دودوونکی الديلم** (Aldhelm) **ګڼل سوی دئ. الديلم[1] بيا پخپله د ځلرمي، پنځمي ميلادي پېړۍ له لاتين شاعر سيمفوزيوس** (Symphosius) **څخه الهام اخيستونکی ښکاري. انګرېزي معماوي که څه هم اوږده ادبي سابقه لري خو دا اوسنۍ کيسۍ ډوله ټوټې چي د معما**

---

[1] الديلم (۶۳۹ – ۷۰۹ع) چي په زړه انګرېزي کي د ايلديلم (Ealdhelm) په شکل ليکل کېدی، د لاتيني ژبي شاعر او د انګلوساکسون ادب عالم او د انګلستان په شيربورن کي د کليسا مشر وو. د ده د ژوند زمانه د اسلام د مقدس دين د بعثت د سر له کلونو سره برابره ده. نوموړی د روم په قوانينو، استرونومۍ، استرولوجۍ او د بېلابېلو کاليندارو (جنتريو) د حساب په آرټ کي ئې زده کړي کړي وې. دی په يوناني او عبري ژبو پوهېدی او پخپلو ليکنو کي ئې خورا ډېر لاتين سوي يوناني لغتونه کار کړي دي. ده د (Northumbria) پاچا ته يو ليک په لاتيني نثر کښلی وو او په هغه کي ئې ۱۰۱ معماوي ځای کړي وې. په دې کي يوه معما په ۸۳ کرښو کي ځای سوې وه. د (Northumbria) سيمه اوس په شمالي انګلستان او جنوب ختيځ سکاټلينډ کي شامله سيمه ده.

(Riddles) په نامه یادېږي له هغو پخوانیو سره دونده زیات نه وایي. د انګریزي معماوو لرغوني نمونې په هغه خطي مجموعه کي خوندي دي چي د پېریانانو د کیسو او ځینو شعرو او پندونو سره یو ځای په یوه مجلد کي ګنډل سوي دي او د انګلستان د (Exeter) ښار په لویه کلیسا کي له یوولسمي عیسوي پېړۍ څخه ساتله کېږي. دغه مجموعه په زړو انګرېزي خطي نسخو کي یوه ډېره مهمه نسخه ده. د دغي مجموعې معماوي د کوچنیانو د سندرو په شکل او د هرزه او چټي کنایو په ښه جوړي سوي دي.

په لرغوني یونان کي د وینا یو ادبي شکل رواج درلود چي په هغې کي به ئې یو خیال یا مفکوره یا یوه کیسه او واقعي پېښه په یو راز غیرواقعي کیفیت کي بیانوله. دغه راز ویناته ئې (Metaphors) وایه. د مثال په توګه: "د دې سترګي د جواهرو په شان ځلېدلې". دغه راز ترکیبونه زموږ په ادب کي د تشبیه او استعارې تر نامه لاندي راځي. میتافور هم یو راز استعاروي ترکیبونه ول. ارسطو (۳۸۴ – ۳۲۲ ق م) دغه میتافور یا استعاره او معما (Riddles) یو له بل سره تړلي بلل. ده به ویل: "ښې معماوي موږ ته په مجموع کي غوره میتافورونه په لاس راکوي ... ښه معما کولای سي چي د یوه ښه میتافور له پاره لازم مواد برابر کړي".

د پوهانو په نظر معماوي (Riddles) یو نړۍ وال آرټ دئ چي بېلابېل کلچرونه په ځان کي رانغاړي. د هغو مثالونه موږ په فنلینډي، هنګري، د امریکا په هندي، چینایي، روسي، الماني او فلیپیني کلچرونو کي موندلای سو.

## د معماوو متکامل شکلونه:

د (Riddles) یا معماوو پر مختللی شکل (Puzzles) نومېږي. د معماوو د دغو دوو شکلونو تر منځ له مشابهتو سره سره ځیني توپیرونه هم سته.

د پزل په حلولو کي له مشخصو فارمولونو، چارټونو، قاموسونو څخه

استفاده کېدلای سي. د مثال په توګه منطِقي پزل (Logic puzzles) له لغاتو سره سروکار لري او د هغو د حل له پاره له یوه مخصوص تنظیم سوي جدول څخه کار اخیستل کېږي خو (Riddles) ریډل بیا د د تفکر او تصور او قیاس کولو مهارت ته اړتیا لري. د ریډل په انواعو کي انیګماز (Enigmas) په نامه یوه لوبه سته چي په استعاروي ژبه جوړه سوې وي او د حل له پاره ئې دقیق فکر کول لازم دي. ریډل هم ځانته مشخص اصول لري خو دا اصول د پزل په شان ساینټیفیک اصول نه دي. ریډل پر فکر و تصور باندي ولاړه معما ده خو پزل پر واقعیتونو باندي تکیه لري.

د (Puzzles) تر نامه لاندي اوس په نړۍ کي د کوچنیانو او لویانو له پاره په زرو ټوکه کتابونه هر کال چاپېږي. د (Puzzles) په شکل لوبې او ګېمونه د کوچنیانو له فکري ودي سره مرسته کولای سي. په دغو لوبو یا ذهني مصروفیتو کي حروفي جدولونه (Crosswords) هم راتلای سي. دغه جدولونه نن ورځ د نړۍ په ډېرو معتبرو ورځپاڼو او مجلو کي هره اونۍ موندل کېدلای سي. د حروفي جدولو حلول هم یوه فکري او ذهني مشغله ده او هم د هغو کسانو له پاره د وخت ژر تېرېدلو وسېله ده چي د کار او وظیفې په چاپیریال کي ئې د اوږده انتظار ساعتونه شامل وي. د ټکسي چلوونکي، د امنیتي پوستو کارکوونکي، زاړه متقاعدین او تنکي ماشومان هر یو له خپلي فکري وړتیا او لوړتیا سره سم جدولونه له ځان سره ګرځوي او په لازمو فرصتونو کي ځانونه په مشغولوي.

په امریکا کي د حروفي جدولونو مشهور ایجادوونکی او خپروونکی جان سیمسن (John.M.Samson) نومېږي. د ده له خوا جوړ سوي حروفي جدولونه (Crossword puzzles) په نیویارک ټایمز اخبار او نورو مشهورو ورځپاڼو کي خپرېږي. د شمالي امریکا په کتاب پلورنځیو کي د ده پنځه ویشت عنوانه کتابونه موندل کېږي چي ټول ئې د (Crossword puzzles)

**جدولونه دي.**

**په افغانستان کي هم تر اوسنيو درو څلورو لسيزو جګړو دمخه په مجلو، جريدو او اخبارو کي په پښتو او دري ژبو حروفي جدولونه چاپېدل.**



***

# د ابجد (جُمَل) حساب

له (جُمل) څخه مراد د ابجد تورو په واسطه حساب کول دي. ابجد توري په حقیقت کي د عربي الفبې ټول حرفونه دي چي په اتو کلمو کي په دې ډول اوډل سوي دي:

ابجد – هوز – حطی – کلمن – سعفص – قرشت – ثخذ – ضظغ.

د ابجد تورو د پیدایښت په باب ډول ډول نظریې سته. تامس پاټریک هیوز (Thomas Patrick Hughes) په ډکشنري آف اسلام (۳ مخ) کي د ابجد تر نامه لاندي کښلي دي:

ترجمه: ابجد د یوه حسابي انتظام نوم دئ چي په هغه کي هر توری له یوه څخه تر زرو پوري مختلف قیمتونه لري. دا توري پر هغه ترتیب باندي اوډل سوي دي چي یهودانو تر څلورسوم میلادي کال پوري کار څني اخیست. پر دغو تورو باندي شپږ نور توري د عربو له خوا زیات سوي دي. د القاموس په نامه د عربي فرهنګ مؤلف وايي چي د ابجد اول شپږ کلمې د ماد (Madyan – Midian) پاچهانو نومونه دي او وروستۍ دوې کلمې ئې عربو پر زیاتي کړي دي[1]. ځیني بیا وايي چي د ابجد کلمات د عربي تورو د مخترع مورامیرابن مورا(Muramir ibn Murra) د اتو زامنو نومونه دي[2].

---

[1] ماد د یوه قوم نوم دئ چي تر میلاد اووه سوه پخوا ئې د ماد دولت تاسیس کړ. دغه دولت د هخامنشیانو په لاس نسکور سو (دهخدا).

[2] المورا د یوې قبیلې نوم دئ چي د بنویم له اولادې څخه دي او مورا میر د الانبار سیمي اوسېدونکی وو. الانبار د عراق یو لوی ولایت دئ چي د دغه هیواد په لوېدیځ

د "موادالتواريخ" مؤلف حسين نخجواني ليکلي دي چي د دغو تورو د ټاکونکي او د هغو د ټاکني زمانه په صحيح ډول معلومه نه ده. داسي ويل کېږي چي له جُمَل حساب څخه د کار اخيستلو زمانه د اسلام اوايلو ته رسېدلې ده. خو د موجودو اسنادو او شواهدو له مخي د الفبې تورو ته پاملرنه، د ابجد، هوز، ... په ترتيب د هغو اوډنه او په حساب کي ورڅخه کار اخيستنه تر اسلامي عصر راوروسته زمانه په ځان کي راکښېباسي.

د تاريخي مادو په جوړولو کي د الفبې له تورو څخه د ابجد په حساب ګټه اخيستل خاص مهارت او هنرمندي غواړي. د هر ناظم له وسه پوره نه ده. د ادب د اولنيو پوهانو په نظر خو دا فن د موسيقۍ، نقاشۍ په شان يو ظريف فن وو او په مستظرفه صنايعو کي شمېرل کېدی. د تاريخي مادو په جوړولو کي له زياترو ادبي صنعتو څخه لکه تجنيس، ايهام، توريه او نورو څخه کاراخيستل کېږي.

د ابجدي تورو معادل عددونه پر څو ډولو دي چي مشهور ئې دا دي:

**کبير ابجد** (**حساب الکَبير**):

کبير ابجد ته (جُمَل) هم وايي. د جمل توري داسي دي:

ابجد – هوز – حطی – کلمن – سعفص – قرشت – ثخذ – ضظغ.

د دغو تورو عددي قيمتونه (معادل) په دې ډول دي:

ا = ۱، ب = ۲، ج = ۳، د = ۴، هـ =۵، و = ۶، ز = ۷، ح = ۸، ط = ۹، ی = ۱۰، ک = ۲۰، ل = ۳۰، م = ۴۰، ن = ۵۰، س = ۶۰، ع = ۷۰، ف = ۸۰، ص = ۹۰، ق = ۱۰۰، ر = ۲۰۰، ش = ۳۰۰، ت = ۴۰۰، ث = ۵۰۰، خ = ۶۰۰، ذ = ۷۰۰، ض = ۸۰۰، ظ = ۹۰۰، غ = ۱۰۰۰.

---

کي پروت دئ او له اردن، سوريې او سعودي عربستان سره ګډه پوله لري. د دغه ولايت پايتخت الرمادي (Ramadi) ښار دئ. نور مهم ښارونه ئې فلوجه او حديثه دي. – د ويکيپيډيا په حواله. م. هـ).

تورو ته د قیمت ورکولو اسانه لار دا ده چې لومړی باید د (ابجد، هوز، ...) کلماتو پرله پسې (مسلسل) وینګ په پام کې ونیول سي او پر هغه ترتیب باندي وویل سي لکه چې ما لوړ درته کښلي دي. بیا نو لومړیو لسو تورو ته باید په ترتیب سره له یوه څخه تر نهو پوري قیمت ورکړه سي. ورپسې لسو تورو ته باید په ترتیب سره (۱۰، ۲۰، ۳۰، ۴۰، ...) قیمتونه ورکول سي او وروستیو لسو تورو ته په ترتیب سره (۱۰۰، ۲۰۰، ۳۰۰، ...) قیمتونه ورکړه سي. دا ترتیب د ابو نصر فراهي (۷۴۰هـ ق مړ) [1] په یوه رباعي کي داسي راغلی دئ:

یگان یگان شـمر ابجـد حروف تا حـطی
چنانکه از کلمن عـشر عـشر تا سـعفص
پس آنگه از قرشت تا ضظغ شمر صد صد
دل از حساب جُمل شد تمام مستخـلص

د کبیر ابجد اول لس عددونه (اُحاد) دوهم لس عددونه (عشرات) او دریم لس عددونه (مآت) نومېږي.

د پښتو الفبې خاص توري د هغو د عربي قریب المخرج تورو قیمت لري. په دې ډول:

پ = ب = ۲
ټ = ت = ۴۰۰

[1] ابو نصرالدین مسعود بن ابوبکر فراهي مشهور په ابونصرفراهي (۷۴۹هـ ق = ۱۳۴۸ع مړ) د افغانستان په فراه کي زېږېدلی او د پارسي ژبي شاعر او قاموس لیکونکی وو. مشهور اثر ئې نصاب الصبیان نومېږي چي عربي لغات ئې په پارسي نظم پکښې معنا کړي دي. د نصاب الصبیان یوه زړه خطي نسخه زما په کتابتون کي سته. وایي چي ابو نصر فراهي مورزاده ړوند وو او د اکتاب به ئې د امالي په ډول (بل چا ته د ویلو له لاري) لیکلی وي.

چ = ج = ۳

څ = س = ۶۰

ځ = ز = ۷

ډ = د = ۴

ړ = ر = ۲۰۰

ژ = ز = ۷

ږ = ژ = ز = ۷

ښ = ش = ۳۰۰

همزه (ء) د الف قیت لري یعني (۱) دئ. کله کله ئې په محاسبه کي نه شمېري. مد لرونکی الف له (۱) سره مساوي دئ. مشدده (ی) کله پر دوو او کله پر یوه (ی) شمېرل کېږي.

د کلماتو حرکتونه (زوَر، زېر، پېښ) په حساب کي نه راځي خو که د معما جوړوونکی وغواړي چي دغو حرکاتو ته قیمتونه ورکړي نو بیا (زوَر) د (الف) یا (ه) په شکل، (زېر) د (ي) په بڼه او پېښ د (و) په ډول کاږي.

## صغیر ابجد (حساب الصغیر):

د صغیر ابجد (حساب الصغیر) توري او اړوند قیمتونه ئې داسي دي:

ا = ۱، ب = ۲، ج = ۳، د = ۴، هـ = ۵، و = ۶، ز = ۷، ح = ۸، ط = ۹، ی = ۱۰، ک = ۸، ل = ۶، م = ۴، ن = ۲، س = ساقط (صفر)، ع = ۱۰، ف = ۸، ص = ۶، ق = ۴، ر = ۸، ش = ساقط (صفر)، ت = ۴، ث = ۸، خ = ساقط (صفر)، ذ = ۴، ض = ۸، ظ = ساقط (صفر)، غ = ۴.

## وضعي ابجد:

د وضعي ابجد عددي قیمتونه داسي دي:

ا = ۱، ب = ۲، ج = ۳، د = ۴، هـ = ۵، و = ۶، ز = ۷، ح = ۸، ط = ۹، ی = ۱۰، ک = ۱۱، ل = ۱۲، م = ۱۳، ن = ۱۴، س = ۱۵، ع = ۱۶، ف = ۱۷، ص =

۱۸، ق = ۱۹، ر = ۲۰، ش = ۲۱، ت = ۲۲، ث = ۲۳، خ = ۲۴، ذ = ۲۵، ض = ۲۶، ظ = ۲۷، غ = ۲۸.

په پښتو ادب کي د راغلو معماوو په حل کي له دغو وضعي قيمتو څخه کار اخيستل زما په سترګه سوي نه دي.

په پښتو او فارسي معماوو کي معمولاً له کبيرابجد (حساب الکبير) څخه کار اخيستل کېږي. که د شاعر يا ليکوال مراد نور حسابونه وي، بيا په څرګنده توګه اشاره ورته کوي.

د ابجد له تورو څخه د لنډو ليکنو، د کتابو د سريزو او نورو مختصرو تعليقاتو د مخونو د عددو پر ځای د متن له صفحو څخه د بېلولو په خاطر هم کار اخيستل کېږي. مثلاً اول مخ (الف)، دوهم مخ (ب)، دريم مخ (ج)، ... بلل کېږي.

***

# د معماوو ځیني اړوند اصطلاحات

**د تکمِلې عمل:**

تکمِله بشپړولو ته وایي. په معما کې د تورو د ابجدي قیمتونو جمع کولو ته وِیل کېږي.

**د عددي تبدیل عمل:**

د عددي تبدیل په عملیه کې د لاس ته راغلي عدد له پاره په معما کې د کار سوي قرینې له مخې یوه کلمه، یو عبارت، یو ترکیب، یا یوه جمله باید ومونډل سي. د مثال په توګه علامه رشاد ﷫ د حاجي جمعه بارکزي په یوه معما کې د (۳۰۴) عدد له پاره (د پیر دیدن ک) جمله مونډلې ده چې په ابجدحساب کې ئې د ټولوتورو مجموعي ارزښت له (۳۰۴) سره برابر دئ.

**د تصحیف عمل:**

د تصحیف په عملیه کې له کوم توري څخه ټکي ایستل کېږي، یا له یوه لغت څخه کوم توری لیري کېږي. مثلاً د شین له توري څخه درې ټکي لیري کېږي او (س) ځني جوړېږي. د تصحیف په عملیه کې هم باید د معما په بیت کې راغلې قرینه په پام ونیول سي.

**د تخرجې عمل:**

د تخرجې پر وخت له یوه عدد څخه بل عدد د ټاکلي قرینې پر اساس منفي کېږي.

**د تبدیل عمل:**

**د عددي تبديل عمل او د تبديل عمليه يو مفهوم لري.**

**قرينه:**

**قرينه په لغت کي د دوو شيانو يا دوو مفاهيمو تر منځ معنوي مناسبت ته ويله کېږي (غياث). په معما کي هغه کلمه، يا عبارت ته قرينه ويله کېږي چي لوستونکي ته د تکمِلې، تخرِجې، تصحيف يا تبديل د عمل لارښوونه کوي**

**ساده معما:**

**ساده معما هغي معما ته ويله کېږي چي د حل له پاره ئې ځوک مجبور نه وي له پورتنيو عمليو ځخه کار واخلي. مثلا دا لاندي تاريخي ماده:**

د دکن په جنګ شهید شو خوشنود اوسه
په تاریخ د زر څلــو ښتد ده ګـــذر وو

**۱۰۴۰هـ ق**

**مشوشه معما:**

**مشوشه معما د (ړندې معما) په نامه هم يادېږي. په دغه معما کي قرينه نه وي راوړل سوې او لوستونکی له حدس و ګومان ځخه کار اخيستلو ته مجبور سي.**

**بيينات اوزُبُر:**

**بينات د (بينة) جمع ده. معنا ئې روښانوونکي، روښانه اړخونه، رښتيني شاهدان، ... ده (دهخدا). په قرآن عظيم کي ځو ځايه دغه کلمات راغلي دي او له بيينات ځخه مراد د انبياوو له خوا (معجزې) او له (زبر) ځخه مطلب پر هغوی باندي نازلي سوي صحيفې او کتابونه دي.**

**په جفر کي د دغو دوو کلماتو استعمال بل راز دئ. د جفر په اصطلاح**

کي د يوې کلمې د تورو تلفظ ته اعتبار ورکول کېږي. د مثال په توګه د (ج، ق، ل، ن) تورو تلفظ "جيم"، "قاف"، "لام"، "نون" دئ. په دغو تلفظونو کي د سر توري (زُبُر) او پاته نور توري "بينات" بلل کېږي. يا په يوه بل مثال کي:

د (محمد) کلمې توري (م، ح، م، د) د هغو د تلفظ په اعتبار (ميم، حاء، ميم، دال) بلل کېږي. د تلفظ د کښل سوي شکل د سر تورو ته (زُبُر) وايي او نورو پاته سوو تورو ته (بينات) وايي. د پورتني مثال په تلفظي څرګندونه کي (م، ح، م، د) ته (زُبُر) او (يم، اء، يم، ال) ته (بينات) وايي.

د الفبې په تورو کي (س) يوازنی توری دئ چي د (زبر) او (بيينات) ابجدي ارزښت ئې يو شان دئ.

س = سين

س = زُبُر = ۶۰

ين = بيينات = ۱۰ + ۵۰ = ۶۰

له دغي طريقې څخه د تاريخي نومونو په استخراج کي کار اخيستل کېږي. د شيعه مذهب عالم بهاءالدين محمدبن حسين عاملي مشهورپه شيخ بهائي (۹۲۵ – ۱۰۰۰هـ ق) په جعفري فقه کي خپل پارسي اثر (جامع عباسی) د صفوي پاچا لومړي شاه عباس (۹۹۶ ۱۰۳۸هـ ق) په نامه تاليف کړی دئ. په دغه کتاب کي ئې يوه قطعه راوړې ده چي په هغې کي د شاه عباس نوم د "بينات زُبُر" په قاعده له "خلدالله ملکه" څخه استخراج کېدلای سي. په دې ډول:

د (خلدالله ملکه) عبارت توري داسي تلفظ کېږي: (خا، لام، دال، الف، لام، لام مشدد، ها، ميم، لام ، کاف، ها). د دغو کلمو زُبر چي ايسته سي، بينات ئې (ا، ام، ال، لف، ام، ام، ا، يم، ام، اف، ا) پاتېږي. د دغو تورو د ابجدي ارزښتو مجموعه داسي ده:

(۱ + ۴۱ + ۳۱ + ۱۱۰ + ۴۱ + ۴۱ + ۱ + ۵۰ + ۴۱ + ۸۱ + ۱) = ۴۳۹

د (شاه عباس) نامه ابجدي ارزښت هم (۴۳۹) کېږي.

د زُبُر په عملیه کي کله کله یوه کلمه یا جمله راوړل کېږي مګر د لیکوال مطلب د رمز په توګه کومه بله داسي کلمه وي چي ابجدي ارزښت ئې له دغي راوړل سوي کلمې سره یو شانته وي. البته په زُبُر کي د رمز او مرموز تر منځ رابطه او قرینه له ضروریاتو څخه ده. له قرینې پرته د پټې (مرموزي) کلمې یا جملې موندل ډېر سخت کار او حتی ناممکن کار دئ.

علامه رشاد رحمة الله علیه پخپل اثر (حافظ الملک حافظ رحمت خان بړېڅی او د هغه کورنۍ)، ۱۳۵ – ۱۳۶مخونو کي د زبر په مثال کي د نواب محبت خان بړېڅي (۱۱۶۴– ۱۲۲۳هق) یو عربي شعر راوړی دئ:

اذا لـــم یبـــق فـــی الاســـلام آثـــار
جـــری مـــن مقلتـــی دمـــع کانهـــار
فقالـــت الهـــاتف: مـــن یظهرالـــدین
فجـاء الـصوت: " سـلطان الجهانـدار"

علامه مرحوم کښلي دي چي د (سلطان الجهاندار) ابجدي ارزښت (۴۴۵) کېږي چي دا قیمت د (شاه زمان ما) له ابجدي ارزښت برابر دئ. او ورپسې ئې زیاته کړې ده: "په دغه وخت کي نواب محبت خان دغه زبر وایه، په افغانستان کي د پاچهۍ پر تخت شاه زمان سدوزی (۱۲۰۷ – ۱۲۱۵هـ ق) ناست و او په هندوستان کي د مهاجمو پرنګیانو د نفوذ او استیلا د مخنیوي امید فقط له ده کېده".

علامه رشاد مرحوم د دغه زبر په باب اوږده تشریح ورکړې ده او د هغې په پای کي وایي:

"د اعلیحضرت شاه زمان سدوزي په باب بیان د زبر د قرینې په دود اوږدسو، چي ګوندي له "سلطان الجهاندار" څخه د "شاه زمان ما" په

مرادولو کي له درنو مطالعينو سره مرسته وکړي او له جهاندار ځخه د ډهلي د مغول پاچا شاه عالم زوی، شهزاده جوان بخت مراد نه کړي.

دپښتو دېوان لرونکي شاعر قنبرعليخان[1] د بينات پر قاعده ويلي دي:

عشق عدد د محـمدعلی د اسم
په ابجد د بينات شي د زړه سوبَ
(ديوان: ۲۵ مخ، د همېش خليل چاپ ۱۹۷۲ع د علامه رشاد د کتابتون)

علامه رشاد رحمة الله عليه د دغه دېوان پر يوه څنډه د دې بينات حل راوړی دئ چي زه به ئې له يو څه تفصيل سره دلته رانقل کړم.

د (محمد) ابجدي ارزښت (۹۲) دئ او د (علی) دا (۱۱۰) کېږي. د دواړو مجموعه (۲۰۲) راځي.

د (عشق) کلمې درې توري د بينات پر قاعده داسي محاسبه کېږي:

عين، شين، قاف

د دې دروتورو زُبُر، د سر اوازونه يعني (ع، ش، ق) چي ځيني ليري سي:

ين = ۶۰
ين = ۶۰
اف = ۸۱
ټول = ۲۰۱

دغه لاس ته راغلی عدد د (محمد) او (علی) د نومو له مجموعي ابجدي ارزښت (۲۰۱) سره د يوه (۱) په اندازه تفاوت لري او دا د معما کمزوري ښيي. د دې تفاوت د ليري کېدوله پاره زما (هوتک) په فکر

---

[1] قنبرعليخان شيعه مذهبه پښتون وو. زه د ده د معماوو پر ادبي اړخ څېړنه کوم. عقيدتي خوا مې مراد نه ده (م. هـ).

**شاعر د (علی) کلمه د (عالي) په ډول تلفظ کړې ده او په دې ډول ئې پر مجموعي ابجدي ارزښت یو عدد اضافه کېږي او (۲۰۲) ځني راوزي. (والله اعلم بالصواب).**

**بل مثال:**

**قنبرعلیخان ویلي دي:**

د الله پـــه اســـم ذات کـــه فهـــم وکـــړې
یـــو الـــف دئ بلـــه هـــې ده دواړه لامـــه
د الـف عـدد کـه شـمار پـه بینـات کـړې
مـساوي دئ د حـضرت علـي لـه نامـه
دواړه لام و هـې حـساب پـه بینـات کـړې
ده نامـــه د محمدصـــاحب تمامـــه

(دیوان: ۱۰۸مخ)

**حل:**

**- د (الف) بینات (لف) دئ او ابجدي ارزښت ئې (۱۱۰) کېږي.**

**د بینات په قاعده د (علي) ابجدي ارزښت هم (۱۱۰) راځي. په دې ډول:**

**د (عین) بینات (ین) = ۶۰**

**د (لام) بینات (ام) = ۴۱**

**د (یې) بینات (ی) = ۱۰**

**ټول = ۱۱۰**

* * *

**- د (الله) د دوو لامو بینات داسي دئ:**

**لام = ام = ۴۱**

**چي دوه چنده سي (۸۲) کېږي.**

**هې = ی = ۱۰**

**۸۲ + ۱۰ = ۹۲**

**د (محمد) ابجدي ارزښت هم (۹۲) دئ. په دې ډول:**

**م = ۴۰**

**ح = ۸**

**م = ۴۰**

**د = ۴**

**ټول = ۹۲**

**بل مثال:**

چې الله د همه اسمو اسم ذات دئ
د الله الف عـــــلي په بينات دئ
(۱۲۴ مخ)

**حل:**

**د الف بينات = لف = ۱۱۰**

**د علي ابجدي ارزښت: (ع = ۷۰) + (ل = ۳۰) + (ی = ۱۰) = ۱۱۰**

* * *

**د زبر و بينات پر قاعده ما (هوتک) هم يوه قطعه ويلې ده:**

د وطـن د خـوني رف[1] موکنـدهار دئ
شـــاهدان مـــي دي زُبُـــر و بينـــات
حوالــه بــه د تــاريخ پــر پــاڼو درکــړم
پکـښې وگـوره د سـيمي ټـول حـالات
پــه قلــم د کنــدهار دي ليکــل سـوي
د دې ملــک ټــول حــسنات و سـيئات
چي رف نه وي، ټولـه خونه کنډوالـه وي
پـر رامـات سـي مـار، لـړم خزنـده جـات

---

[1] د (رف) مجازي معنا (چت) ده او دلته په همدغه معنا سره کار سوی دئ.

خدای دي نه نړوي دغه چت هیڅکله
پــر تړلــی مــو حیــات دئ هــم ممــات

**حل:**

**د (کندهار) کلمې د تورو تلفظي بڼه داسي ده:**

**(کاف، نون، دال، ها، الف، را)**

**له دغو تورو څخه چي زُبُر (د سر توري) ووزي، بينات ئې داسي پاتېږي:**

**(اف، ون، ال، ا، لف، ا)**

**د دې تورو ابجدي ارزښت داسي دئ:**

**(اف=۸۱) + (ون = ۵۶) + (ال=۳۱) + (ا=۱) + (لف=۱۱۰) + (ا=۱) = ۲۸۰**

**د (رف) کلمې ابجدي ارزښت هم (۲۸۰) کېږي.**

* * *

# دوهم څپرکی

## تعميې دپخوانۍ دورې په ادب کي

**روښاني ادب:**

د روښاني ادب محتوی د روښاني غورځنګ د فلسفي افکارو توضيح او بيان ته وقف سوې ده. د دغه غورځنګ پيروانو د شعر شکلي او معنوي ښکلا ته دومره زياته پاملرنه نه ده کړې او دغه سبب دئ چي روښاني ادبيات د هغه وخت د معمولو شعري صنايعو او بدايعو له مخي ډېر څه نه راکوي. خو له دې سره سره موږ د دغي دورې په اشعارو کي د خپل وخت د مروجو ادبي صنايعو څرک لرو او هنري خوا ئې يومخيزه بايد نفي نه سي.
د روښاني ادب د مطالعې په ترڅ کي د تعميې او تاريخي مادو لومړنۍ بېلګې په همدغو آثارو کي تر سترګو کېږي چي زه به ئې په لاندي کرښو کي وڅېړم.

### ۱ - د ارزاني خېشکي په کلام کي:

د پښتوشعر و ادب موجوده دېواني پانګه له لسمي هجري پېړۍ څخه په منظمه توګه راپاته ده. دغه دوره د روښاني ادبياتو د منځته راتګ زمانه

ده او د دې لړۍ د سر سړی ملاارزاني خېشکی دئ[1]. د ارزاني خېشکي کليات د ښاغلي ډاکټر پروېز مهجور خوېشکي په سمونه او څېړنه د پېښور يونيورسيټۍ د پښتواکيډيمۍ له خوا په ۲۰۰۵ع کال خپورسوی دئ. ما د دغه کليات له سريزي او شروحو څخه د ارزاني په کلام کي راغلي تاريخي مادې رااخيستي دي.

د دغه کليات په ۷۴، ۷۵، ۱۵۵، ۱۵۶، ۲۰۶ او ۱۰۴۵ مخونو کي دغه تاريخي مادې د اړوندو مسايلو په ترڅ کي راوړل سوي دي.

د يوې الفنامې د ليکلو نېټه په څرگندو عددو سره کاږي:

فقير کوښلی دی دا شعر

په نه صد نود سـنه دی

(د سريزي ۷۴مخ)

په پښتنو کي سنې، نېټې او عددونه زياتره په فارسي ژبه بيانېږي. نن ورځ لا هم دغه عادت ژوندی دئ او د افغانستان پښتانه د زېږېدلو نېټې، د عسکري جلب تېرولو کلونه او د پاچهانو د سلطنت وختونه په فارسي ژبه وايي او د پښتونخوا اوسېدونکي بيا همدغه عددونه په اردو ژبه بيانوي. دا عادت د ژبنيو څېړنولو پاره خورا غوره موضوع ده او څېړني ته ئې د ژبپوهانو له خوا پاملرنه په کار ده.

د يوې غزلي د ويلو کال داسي راښيي:

ارزاني دا غزل کوښلی

په هزار و سه سـنه دی

(د سريزي ۷۴مخ)

---

[1] زموږ په ليکلو تاريخو او آثارو کي خېشکی د پارسي ژبي د ليکدود تر اغېزې لاندي "خويشکی" ليکل سوی دئ. د دغه ناسم ليکدود دوام نوو اکاډيميکو قلموالو په ليکنو کي هم ليده کېږي چي زما په نظر د دغي کلمې د پښتو تلفظ سمه څرگندونه نه ده.

د دې غزلي د ویلو کال ۱۰۰۳هـ ق دئ. (د کلیات ترتیبوونکي د ارزاني په کلام کي د "کوښلی" کلمه د "کښلی" په شکل هم ثبت کړې ده. د لیکدود دغه راز عدم تجانس د ژبي ځېړونکي ته ستونزي پېښوي او نه پوهېږي چي شاعر به فی الواقع هم دغه کلمه په دوه ډوله تلفظ کوله او که دا به د خطاطانو لاسوهنه وي.

د یوې قصیده وشمي غزلي د ویلو نېټه ئې داسي ویلې ده:

ارزاني دا کلام کښلی

په الف تسعه ســـــنه

(د سریزي ۷۵مخ)

**۱۰۰۹هـ ق**

د دغه بیت لومړی نیم بیتی د کلیاتو د سریزي په ۲۰۶مخ کي بدل سوی دئ:

"ارزاني دا کلام کړی"

زه نه پوهېږم چي د دغه تصرف له اسیته گوته چا ته ونیسم؟

بل ځای:

ارزاني دا کلام کـــړی

په تاریخ د دوست دهغ

(د سریزي ۱۵۵مخ)

د تاریخي مادې "دهغ" ابجدي ارزښت (۱۰۰۹هـ ق) کېږي.

په یوه بل ځای کي د روښاني مسلک د مقاماتو د بیان په ترځ کي وایي:

ارزانــي وینـا کـړه عـرض　　　اشـنایي د حـق ده فـرض

د دې عرض تاریخ وغواړه　　　پـه حساب لـه حرفـه یـرض

(د سریزي ۷۵مخ)

د (یرض) ابجدي ارزښت (۱۰۱۰هـ ق) دئ.

او د يوې بلې غزلې د ويلو نېټه ئې داسې بيان کړې ده:

دا غـــــزل په تاريخ کښـلی
په حساب د دوست "دغو" دی
غـــين زر دال ئې څــلور دی
په شپږ ياد حساب د "واو" دی
(د سريزې ۷۵مخ)

مطلوبه نېټه ئې (۱۰۱۰هـ ق) ده. دغه تاريخي ماده يو څه نوښت لري او هغه دا چې شاعر پر تاريخي ماده (دغو) سربېره د هغې حل هم په شعر کې راوړی دئ.

## ۲- د دولت لواڼي په کلام کې:

دولت لواڼي د الهداد د مړينې نېټه داسې ويلې ده:

په يوه آهې ارواح لـــه تنه بېل شـــو
په تاريخ د غين و نون، ح، ئې سفر وو
(ديوان، سريزه نهم مخ، د کابل چاپ)

دغه معما د دولت لواڼي په ديوان (۲۱مخ) کې سمه نه ده ثبت سوې. د (غ) پر ځای (عين) ليکل سوی دئ او ټوله مصرع داسې ده: "په تاريخ د عين، نون، ح، ی، سفر وو". له چاپي ثبت څخه د معما حل داسې راوزي:

غ = ۱۰۰۰
ن = ۵۰
ح = ۸
ی = ۱۰

ټول = ۱۰۶۸

علامه پوهاند رشاد رحمة الله عليه د همدغه چاپي ديوان په سريزه (نهم مخ) کې د الهداد بن جلال الدين بن مياروښان د مړينې کال ۱۰۵۸هـ ق بللی دئ

**او دا کال له هغه ثبت څخه لاس ته راتلای سي چي د دې بحث په سر کي راوور. " په تاريخ د غين و نون حې ئې سفر وو".**

**غ = ۱۰۰۰**

**ن = ۵۰**

**ح = ۸**

**۱۰۵۸هـق**

**د دغي قصيدې په يوه بل بيت کي ئې د ميرزاخان انصاري د مرگ نېټه هم راښوولې ده:**

د دکن په جنگ شهيد شو خوشنود اوسه
په تاريخ د زر څلـــو ېښت د ده گـــذر وو

**د ديوان په ۲۲۳مخ کي د رشيدخان يوه ويرنه راغلې ده چي د سر دوه بيته ئې داسي دي:**

زړه مـي نـه کـه پـه بېلتـون د اشـنا صـبر
پـــه فـــراق بـــه ژاړم لکـــه ابـــر
رشيد خان د ټول صاحب تر جهان تير شو
ښايـسته صـورت ئـې ونيـو وطـن قبـر

**او د مړيني نېټه ئې دا ډول بيان کړې ده:**

کـه تـاريخ حساب ئـې غـواړې لـه ابجـده
پـدا حـرف غـين و نـون، ح و کـړه صـبر

**حل ئې:**

**غ = ۱۰۰۰**

**ن = ۵۰**

**ح = ۸**

**۱۰۵۸هـق**

علامه رشاد د دولت د دېوان په سريزه (نهم مخ) كي كښلي دي چي رشيدخان د ميا روښان د لمسي الهداد بن جلال الدين لقب وو. دا لقب د هندوستان مغل پاچا جهانګير (۱۰۱۴ – ۱۰۳۷هـ ق) هغه وخت وركړ چي الهداد ورته واردواره تسليم سو (۱۰۲۶هـ ق). تر دغي تسليمۍ دوه كاله وروسته الهداد بيا مغلو ته ياغي سو خو ماته ئې وخوړه. تر ماتي وروسته جهانګير وباخښه او وئې نازاوه[1].

تر دغي ويرني وړاندي ئې په يوه قصيده وشمه غزل او يوه بله غزل كي د مخلص پر مرګ هم ساندي ويلي دي چي په ترتيب سره په دې بيتو شروع كېږي:

غم ديده زړه مي محـــزون شـــو
پر (په) مخلص يار پسې خون شو

٭٭٭

د مخلـــص جـــدايى كـــړى يـــم بـــسيار خـــوږ
زړه مـــي دى د بېلتانـــه پـــه تيـــغ افګـــار خـــوږ
د فـــراق پـــه تيـــره تـــوره لېنـــده غـــشي
كړم مخلص مهروى، زړه وړوني خوش ګفتار خوږ

د اريانتيا خبره دا ده چي په چاپي دېوان كي ئې دغه دواړي ويرني د حضرت علي كرم الله وجهه مرثيې بللي دي او غټ عنوانونه ئې پر كښلي دي او د چاپي تېروتنو په سمون ليک كي ئې اشاره هم نه ده ورته كړې.

## ۳ - د ميرزاخان انصاري په كلام كي:

د ميرزاخان انصاري د دېوان د (واو) رديف په يوه غزله كي تر مقطع دمخه يو بيت سته، چي د تعميې په شكل ويل سوى دئ:

---

[1] ما د روايت مفهوم پخپلو كلماتو كي را اخيستى دئ (هوتک).

گهي نون په دوه الف کښي
گـه د (هـ) د وړاندي (وو)
(۹۴مخ، د کابل چاپ)

د لومړي نيم بيتي مطلب (انا) دئ او د دوهم دا (هو).د دغه غزلي نوري قافيې (لَو، نَو، رو، پلو، پرتو، ...) دي.

## ۴- د اخوند درويزه په مخزن الاسلام کي:

د اخوند درويزه ننگرهاري(۱۰۲۸ هـ ق مړ) آثار که څه هم د روښاني غورځنگ او ادب پر خلاف ايجاد سوي دي، خو بيا هم د دغي دورې په ادبي پانگه کي شامل بلل کېږي. د مخزن الاسلام په "نکته شانزدهم" کي د نورالدين حمزه آذری بن عبدالملک طوسی[1] د يوې معما پښتو ژباړه سته. اصل معما په فارسي ژبه داسي ده:

درته جلباب عشق مست دو شاه خفته اند
مست نگردی بعـين عــــين بلا گفته اند
(مخزن – ۱۶۳مخ د۱۳۰۰هـ ق چاپ، دهلی)

اخوند درويزه دغه معما په پښتو ژبه داسي ترجمه کړې ده:

"د شـــــاه تر ځـــــای درلاندي دوه مست شـــاهان اوده دي
سکه مستي يې پعين مکړه چه د زلفو کاته ئی بې جلاد نه دي"
(هماغه مخ، هماغه چاپ)

"ځای در" دلته د کاتب غلطی ده چي د پېښور پښتواکيډيمۍ په چاپ (۱۱۰مخ) کي سمه سوې ده. هورې ئې لومړۍ مصرع داسي ثبت

---

[1] شيخ نورالدين حمزه بن عبدالملک بيهقي طوسي د تيموري پاچا الغ بيگ (۷۹۵ – ۸۵۳هق)معاصر وو. څو واره هندوستان ته تللی وو او د کعبې شريفي زيارت ئې هم کړی وو. په ۸۶۴ يا ۸۶۶ هـ ق کال مړ سوی دئ او په اسفراين کي ښخ دئ. عجايب الدنيا، سعی الصفا، طغرای همايون او جواهرالاسرار ئې د آثارونومونه دي. و گ: لغتنامه دهخدا.

**کړې ده: "د شاه تر څادر لاندې دوه مست شاهان اوده دي". جلباب د (څادر) معنا لري (غیاث).**

**خوشحال خان خټک په سواتنامه کي د اخوند درویزه پر مخزن الاسلام باندي، چي دی ئې په سهوي سره "مخزن الاسرار" بولي؟ نقد کوي او د هغه په ترڅ کي د دغي معما یادونه هم کوي. دی وایي:**

درویزه چي بیان کړی خپل کتاب دی
نوم ئې مخزن الاسرار(؟) کړی جناب دی
هر بیان ئې ناموزون، مجهول، بې رنګه
خالي پاتو له دانشه، له فرهنګه
که یوه مسره په شل، بلکه په سل ده
نامربوطه، ناموزونه، په ویل ده
قافیه ئې لام و دال سره وهلي
په ردیف کي ئې نون واو سره پیېلي
قصیده د "بوصیري" ترجمه کړې
عربي ئې تر پښتو مضحک راوړې
هر هر بیت د قصیدې چي دُرمرجان دی
په پښتو کي ترا وربشو لا ارزان دی
معما د "آذري" ترجمه کړې
تصوف ئې و عالم و ته نومړې

......

(سواتنامه: ۴۵مخ د کابل چاپ)

**دغي معما ته علامه حبیبي په لمنلیک کي کښلي دي: "... د دې بیت اصل او پښتو ترجمه مبهم دي، هر څوک به یو راز مطلب ځني اخلي، خو درویزه د تصوف رنګ ورکړی دی او خوشحال خان هم پر دغه باندي په**

دي الفاظو انتقاد کوي چي: دغه معما د تصوف په څادر کي نغښته شوې ده! اصل و ترجمه ئې دواړه مبهم دي".

***

## د خوشحال خان خټک په کلام کي

د خوشحال خټک په کلام کي د تعميو او تاريخي مادو خورا زياته پرېماني ده. زه به ئې د کندهار چاپ "مرغلري" څخه راټولي او خپله څېړنه به هم ورسره مل کړم. د مخونو حوالې د "مرغلري چاپ ۱۳۱۷ش" دي.

له ما خوار سره څو قاف و هې و رې کړې

جـــگي جـــگي څه خـــو لام و طې و فـا

(۱۲مخ)

په مرغلري کي د "لام" کلمې "م" نسته، ما د (خوشحال خټک کليات، لومړي ټوک) څخه ورواچاوه.

حل: "قاف و هې و رې" = قهر - "لام و طې و فا" = لطف

***

بل ځای:

د غفا د کال بهار گوره خوشـــحاله

چي د مړو به ئې هوا وشي هوس ته

(۶۲مخ)

تاريخي ماده "غفا" ده. حل ئې:

غ = ۱۰۰۰

ف = ۸۰

ا = ۱

۱۰۸۱هـ ق

***

## ۵۲
### د څلور میندو زویه
### د اتـــو پلارو پسر
(۱۱۸ مخ)

**دا بیت د هغي غزلي دئ چي په پیل کي ئې د نظر او ژبي اثر ته اشاره سوې ده.**

**محشي ورته کښلي دي چي له څلورو میندو څخه مطلب څلور عنصره دي او له اته پلاره څخه ممکن "اته عرض" وي. خو دا ئې هم پر زیاته کړې ده چي په ځینو نسخو کي د "نوپلارو پسر" ضبط دئ. چي په هغه صورت کي به مراد نهه فلکه وي. رشتیا هم خوشحال خان په یوه بل بیت کي نهو افلاکو ته داسي اشاره لري:**

ډیر به ښه ښه زویه راوړي دا نه پلاره څـــلور میندې
نن په واړه پښتانه کښي یو خوشحال لایق فرزند دی
(۳۲۰ مخ، دکابل چاپ. مرغلري ۴۳۱مخ) [1]

**له څلورو عنصرو څخه مراد (اور، اوبه، خاوره، باد) دئ. خو کېدای سي چي د خوشحال خان مطلب څلور اقلیمه وي چي مراد ورڅخه ټول هندوستان دئ (غیاث). له نهو افلاکو څخه مراد نهه اسمانونه دي چي وايي د پیاز د پوست په شان یو پر بل پراته دي. اسمانونه معمولاً اووه بلل سوي دي خو قدماوو نهه ګڼل. په دې ډول: فلک قمر، فلک عطارد، فلک زهره، فلک شمس، فلک مریخ، فلک مشتري، فلک زحل، فلک البروج او فلک اطلس (دهخدا). نهم اسمان ته فلک الافلاک وايي. په پخواني حکمت کي د (نه عرض) اصطلاح هم سته چي مراد ورڅخه (کیف، کم، هیئت، متی، مضاف، وضع، فعل، انفعال، مِلک) دي (غیاث اللغات).**

---

[1] په کابل چاپ کي ددې مقطع اول نیم بیتي ته (۵) لیکل سوی دي خو پنځمه حاشیه ځني پاته سوې ده.

له پورتنۍ معما څخه د خوشحال خان مطلب دا دئ چي په دې څلورو اقليمو او نهو افلاکو (ټول کائنات) کي به میندو نور هم ښه ښه زامن راوړي وي، خو خوشحال په پښتانه کي يوازنی "لايق فرزند" دئ.

✶✶✶

په يوه بله غزله کي خوشحال خان د زاړه نجوم له مخي د هري مياشتي (نحس) ورځي يا (شومي ورځي) راښيي. دی وايي:

"دال" و "واو" د محـــــرم د صـــــفر "اک"
د ړومبـــۍ خـــوري د روښـــيم څـــه "يـــک"
د دو همـــــي خـــــور ړومبيــــه اتلـــــسمه
د دريمــــي خـــوري "يـــا" مـــه وکـــړه شـــک
څلـورمي خـور "ی"، "دال" چـي سـره "يـد" شـي
د رجــــب دی "ب" و "يــــج" د شــــعبان "دک"
د روژې د مياشـــتي "جــک" پـــوره حـــساب دی
"حـې" شـوال، ذی القعـده "بـط" ذو الحجـه "وک"

(۱۸۹-۱۹۰مخونه)

په خوشحال کليات لومړی ټوک ۱۰۴مخ کي "چې شوال" ثبت دئ داسي تېروتنه ده چي د خوشال خان خټک کليات (۷۰مخ، چاپ ۱۳۸۷دانش) ته ئې هم لار کړې ده.

د دې ورځو تشريح په (مرغلري) کي داسي راغلې ده چي د محرم د مياشتي (دال = ۴مه)، (واو = ۶مه) - د صفري (ا = ۱) او (ک = ۲۰مه) - د ړومبۍ خور (ی = ۱۰مه) او ( ک = ۲۰مه) - دريمي خور (ی = ۱۰مه) يا (يا= ۱۱مه) - د څلورمي خور (ی = ۱۰مه) او ( دال = ۴مه) د رجب (ب = ۲مه) او ( يج = ۱۳مه) - د شعبان (د = ۴مه) او (ک = ۲۰مه) - د روژې (ج = ۳مه) او ( ک = ۲۰مه) - د شوال (ح = ۸مه) او (ی = ۱۰مه) - د ذی القعدې (ب = ۲مه) او ( ط = ۹مه) د ذی الحجې (و = ۶مه) او ( ک =

۲۰مه) بدشگومه ورځي دي. البته دا راز انګېرني کوم ديني او مذهبي تاداو نه لري. د مسلمانانو په نزد د روژې ټوله مياشت نيکمرغه ورځي دي.

د "نحس" کلمه په قرآن عظيم کي دوه واره راغلې ده. اول آيت د يوڅلوېښتم سورة (حم السجده)[1] شپاړسم آيت دئ:

دوهم وار د څلور پنځوسم سورة (القمر) نونسم آيت دئ:

دواړه آيتونه د (عاد) او (ثمود) قومونو په باب دي او دا دواړي ورځي د دوی له پاره نحس بلل سوي دي. د لومړي آيت شريف په تفسير کي د حضرت شاه ولي الله صاحب (۱۱۱۴ - ۱۱۷۶ه ق) خبره رانقل سوې ده چي فرمايلي ئې دي:

"... دا د نحوست ورځ هغوی لره وه، نه تل". او ورپسې زياته سوې ده: "هغه ورځي منحوسي ګڼلي کېږي - لکه چه په ناپوهانو کښي مشهوره ده. که هغه ورځ د عذاب د راښکته کېدلو په نسبت تل منحوسه وګڼله شي نو کومه ورځ به بختوره وګڼله شي. په قرآن کريم کښي تصريح ده چه هغه عذاب اووه شپې او اته ورځي پرله پسې وو. اوس نو وښيئ چه په دې تقدير د اونۍ (هفتې) کومه ورځ به له نحوسته تشه وي؟" (وګ: پښتو تفسير: ۱۲۹۲/۲مخ، د سعودي چاپ).

په نهج البلاغه (۷۸مه خطبه)[2] کي د څلرم خليفه حضرت علي کرم الله وجهه له خولې روايت دئ، چي وايي: څلرم خليفه چي کله غوښتل د خوارجو جنګ ته (نهروان ته) رهي سي، اشعث بن قيس ورته وويل:

---

[1] د قرآن عظيم دغه صورت د (فصلت) په نامه هم ياد سوی دئ.

[2] نهج البلاغه د حضرت علی کرم الله وجهه د خطبو او مواعظو مجموعه ده چي د سيد رضی ابی الحسن محمد بن الحسين بن موسی بن محمد بن موسی بن ابراهيم بن امام موسی کاظم رحمة الله عليه تاليف دئ. سيد رضی د څلرمي هجري پېړۍ د اهل تشيع علماوو څخه وو.

"(فارسی ترجمه) ای امیرالمؤمنین به شهادت علم نجوم، اگر در این ساعت حرکت کنی می ترسم که به مراد خویش نرسی". وایي حضرت علی کرم الله وجهه ئې په جواب کي اورېدې خبري وکړې او وې ویل: "...هر کس که سخنان تو راست پندارد، قران را دروغ انگاشته (العیاذبالله) ... سپس روی به مردم کرد و گفت: ای مردم از علم نجوم بپرهیزید، مگر بدان مقدار که شمارا در خشکی و دریا راه بنماید، که این علم به کهانت منجر شود و منجم کاهن است و کاهن همانند جادوگر است و جادوگر کافراست و کافر در آتش جهنم. به نام خدای تعالی به راه افتید". د همدغه روایت اغېزه به وي چي د اهل تشیع معاصر علماء هم د نجوم د علم هغه برخه چي د راتلونکو زمانو او حادثاتو په باب پېشگویی ولري، حرامه گڼي[1].

دغه د (سعد) و (نحس) اصطلاحگاني یوازي په پخوانیو نجومیانو کي مطرح نه وې، بلکي د دې ریښه په پخوانیو ادیانو کي هم سته. د عیسویت پیروان همدا اوس د (Good Friday) په نامه یوه ورځ لري چي د دوی په زعم دغه ورځ دعیسی عليه السلام د صلیب کولو ورځ ده او دوی په دغه ورځ روژه نیسي. خوشحال خان په دستارنامه کي لیکي چي له مولانا عبدالحکیم سیالکوټي(۱۵۶۱ - ۱۶۵۶ع) څخه ئې د نورو پوښتنو په ترڅ کي د "ساعت" په باب هم وپوښتل. د ده خپل بیان داسي دئ: "د ساعت شبه مې هم وه - راته ئې ووې چه ساعت شته، که دا هسې نه وی، سرور عالم (صلی الله علیه وسلّم) به د سفر دپاره پنج شنبه دوشنبه اختیار کړې نه وه - ..." (دستارنامه: ۷۰ مخ د پېښور چاپ ۱۹۹۱ع).

خوشحال خان که څه هم د میاشتو نحس ورځي راښیي خو په یوه بله غزله کي ئې خپل معتقدات داسي بیان کړي دي:

---

[1] ماخذ: انترنیټ.

نجـو مي چـې قـدم نـه ږدي بـې نجو مـه
مـوت و فـوت و ناکـامي مـو مي لـه کو مـه
چـي گـړۍ گـړۍ دو رڅو شـپو تیر یږي
پــه کـې راشــي پـه نېکه،پــه چاشــو مه
ځان به خلاص نه کاد بد ساعت له شره
نجــو مي ئــې کــه خبــر دی لــه علو مــه

نېـک و بـد ئې پـه قبـضه کـې د قـضا دي
بېهـــوده خبـــرې مـــه پیمه،وردرو مـــه
(الخ)

✶✶✶

**خوشحال يو بل ځای يو معماوشمه بيت لري. دی وايي:**

راته څه وايې، چې ته په چا مين يې
په ايمابه درته وايم پنـج و شش يم
(۲۱۷ مخ)

**په کليات لومړي ټوک ۱۱۷مخ کي"لا ته څه وايې، ..." دئ.**
**دې بيت ته ئې په (مرغلري) کي د محشي په حواله کښلي دي:**
**"...د ابجد په حساب (ه، و) پنځه او شپږ راځي، چي (هو) ځني جوړيږي، يعني په هو مين يم".**

✶✶✶

**بل ځای:**

که څلور دي که پنځه که شپږ اووه دي
د درویش نشـــــته دا هــــیڅ اتم انم
(۲۲۸ مخ)

**د همدې غزلي يو بل بيت:**

نه په نون دی نه په میم دی نه په جیم دی
کامـــل پاس په لام وهـــــلی دی علَم
(۲۲۸ مخ)

**دغه بیت ته ئې په حاشیه کي کښلي دي: "په دې بیت کښې نون اشاره ده ناسوت او میم ملکوت او جیم جبروت او لام عالم لاهوت ته، چي دا د تصوف په اصطلاح خاص عالمونه دي".**

٭٭٭

**د میم ردیف په یوه غزل کي دا بیت هم تعمیه لري:**

یو مي یار دوهم گلزار ساز و ساقي شته
نن مي کـــومه اندېښنه له غــــین و میمَ
(۲۳۳ مخ)

**حل: (غ + م ) = غم.**

٭٭٭

**خوشحال خان د خپل لمسي معظم پر مرگ سانده ویلې ده چي د (مرغلري) په هې ردیف کي ثبت ده. هورې ئې د لمسي د مړیني نېټه داسي ښوولې ده:**

ښـــــــه تاریخ ئې راغی "بې بدلَ معــــــظم"
خوشحال د ده نیکه دی، د نیکه ئې داغ په زړه شه
(۳۱۰ مخ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| ب | = | ۲ |
| ی | = | ۱۰ |
| ب | = | ۲ |
| د | = | ۴ |
| ل | = | ۳۰ |

م = ۴۰
ع = ۷۰
ظ = ۹۰۰
م = ۴۰

۱۰۹۸هـق

او همدا د "معظم" د مړيني کال دئ چي عبدالقادرخان په "زر اته نوي" ښوولی دئ او تاسي به ئې وروسته ولولی.

د دې معما د ويلو سم شکل "بې بدلَ معظمَ" دئ. که لام او وروستي ميم ته حرکت ور نه کړه سي د مصرع دوې هجاوي کمېږي او که دا حرکتونه د اوسني ليکدود له مخي په (هـ) سره وښوول سي او " بې بدله معظمه" سي، د مړيني نېټه لس کاله نوره هم زياتېږي. دغه ځای دئ چي د معماوو په حل کي بايد د شاعر د وخت ليکدود په پام کي ونيول سي او دغه ځای دئ چي د شاعر په کلام کي د راغلو معماوو په شکل کي هر راز مداخله، په هره انګېزه چي وي، ورانی پېښوي.

***

ډير به ښه ښه زويه راوړي دا نه پلاره ځــلور ميندې
نن په واړه پښتانه کښي يو خوشحال لايق فرزند دی
(مرغلري – ۴۳۱ مخ)

په لمنليک کې ورته کښلي دي: "نه پلاره او ځلورميندي، نه اسمانه او ځلور عنصره دي".

***

په يوه غزله کي خوشحال له (پيری، زړتابه) ځخه شکايت کوي او په يوه بيت کي وايي:

د سترګو په جوهرو مي په سي کښي راښکاره شوه
په مښـــکو په ګـــــوهرو مي په کال راغــــــله پيري
(۴۴۴مخ)

**په لمنليک کي ئې د محشي له خولې کښلي دي چي له (سی) څخه د ابجدپه حساب (۷۰) راوزي او له (کال) څخه (۵۱). ګويا شاعر وايي چي په اويا کلنۍ کي مي د سترګو ليده لږ سوه او په يوپنځوس کلنۍ کي مي په "مښکو = تور وېښته" او "مرغلرو = سپينوغاښو" کي پيري راغله. يعني وېښته مي سپين سول او غاښونه ووتل. د دې غزلي مقطع داسي ده:**

نه ښکار شته نه ګذار شته اوس دي جوړ سلامت ګرزي
د تورو[1] د غـــــرو بزونه، په خـــو شحال راغله پيري

***

**خان د خپل ځوانيمرګ زوی په ويرنه کي د هغه د مړيني تاريخ داسي بيان کړی دئ:**

"طاهر ومړ په شباب کښ" دا تاريخ دی
چه به کال د ده د مرګ ترې رابرسېر شي
(مرغلري – ۴۶۶مخ)

**د دغي تاريخي مادې په باب په حاشيه کي داسي ليکل سوي دي:**

**"دا بدله خان د خپل زوی طاهر په مرثيه کښ ويلې ده، په آخر بيت کښ (طاهر ومړ په شباب کښ) د ابجد په حساب (۱۱۰۳) راځي، چه د مړيني کال ئې دی".**

**دغه تاريخي ماده سمه نه ده حل سوې. لومړی خو په همدغه ليکدود سره د "طاهر ومړ په شباب کښ" ابجدي ارزښت (۱۰۹۳) کېږي، نه (۱۱۰۳).**

**ط = ۹**

**ا = ۱**

**هـ = ۵**

---

[1] د کندهار ښار په شمال کي هم د "تورو" په نامه غرونه سته.

| | | |
|---|---|---|
| ر | = | ۲۰۰ |
| و | = | ۶ |
| م | = | ۴۰ |
| ړ | = | ۲۰۰ |
| پ | = | ۲ |
| هـ | = | ۵ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ب | = | ۲ |
| ا | = | ۱ |
| ب | = | ۲ |
| ک | = | ۲۰ |
| ښ | = | ۳۰۰ |
| ټول | = | ۱۰۹۳ |

(۱۱۰۳) به ښايي د کاتب غلطي وي. دوهم دا چي خان په همدې غزل کي وايي:

زه په وير د معظم په غم کښي ډوب وم
خــبر نه وم چي طـــاهر به تېروبېر شي

ګويا د طاهر او معظم د مړيني واقعه په يوه کال کي پېښه ده. د معظم مړينه د خوشحال خان او عبدالقادرخان دواړو له خولې په (۱۰۹۸هـ ق) کي پېښه سوې ده. د طاهر مرګ هم بايد په همدغه کال وي. په دې صورت کي بايد د تاريخي مادې ليکدود داسي وي:

"طاهر ومړ پشباب کښِ" او د "کښ" کلمې د (ښ) توري زېر (کسره) هم په محاسبه کي شامله ده او د (ی = ۱۰) قيمت لري. نو د تاريخي مادې اصلي بڼه به په نننۍ ليکدود کي داسي وي: "طاهر ومړ

پشباب کښي" چي له دغي مادې څخه (۱۰۹۸) راوزي او دا د طاهر د مرگ کال دئ.

د خوشحال خټک کليات لومړي ټوک (۳۸۹مخ) کي دغي مسئلې ته پام اړول سوی دئ خو تاريخي ماده ئې" طاهر ومړ پشباب کی" گڼلې ده او(ښ = ش = ۳۰۰) د معياريت په حکم ! د تاريخي مادې له (کښي) کلمې څخه ايستل سوی او (کی) ليکل سوی دئ چي دغه راز ليکنه هم مطلوبه سنه په لاس نه راکوي:

| | | |
|---|---|---|
| ط | = | ۹ |
| ا | = | ۱ |
| ه | = | ۵ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| و | = | ۶ |
| م | = | ۴۰ |
| ړ | = | ۲۰۰ |
| پ | = | ۲ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ب | = | ۲ |
| ا | = | ۱ |
| ب | = | ۲ |
| ک | = | ۲۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| ټول | = | ۷۹۸ |

نولکه پورته چي مو وويل "طاهر ومړ پشباب کښي" تاريخي ماده ده او ابجدي ارزښت ئې (۱۰۸۹) دئ.

* * *

**خوشحال خان بل ځای ویلي دي:**

د ملـــــحد په زړه به نه لګي خـــبري
که ویل دي ورته تل د نون و صاد شي
(۵۵۰مخ)

**له ( نون او صاد) څخه مراد (نص) دئ. نص په لغت کي څرګند او صریح کلام ته ویل کېږي او د علم اصول له مخي د قرآن کریم هغه آیتونه چي دوه متشابه کارونه راته څرګندوي چي دا نېک کار دئ او هغه بد. د مثال په توګه د قرآن کریم د سورة البقره (۲۷۵) آیت چي فرمایي: "و احل الله البیع وحرم الربوا" یعني حق تعالی بیع روا کړې او رباء ئې حرامه کړې ده. په ناظم الاطباء کې لیکلي دي چي د قرآن کریم هر هغه آیت چي په واضحه توګه پر مقصود باندي دلالت وکړي، نص بلل کېږي.**

* * *

**خوشحال خان د (وبا= کولرا) ناروغۍ کال په یوه شعر کي یادوي او وایي چي په دغه کال د ده زوی بخت ناک خان او مور ئې په دغه ناروغۍ مړه سول دغه راز ئې سرفراز نومی لمسی چي د سعادت خان زوی وو، هم په دغه کال لېوني سپي وداړه او مړ سو. د آفتونو دغه کال ئې د تعمیې په شکل داسي بیان کړی دئ:**

د "غـــواص" د کـــال وبـــا　　خـــدائې مـــه راولـــه بیـــا
بخت ناک خان مي پکښې و مړ　　مـــور ئـــې هـــم بو تـــه قـــضا
ســـــرفراز د ســـــعادت ؤ　　ښـــه نمـــسی مـــي ؤ زیبـــا
هـــم حـــافظ د درســـت قـــرآن ؤ　　هـــم پـــه خـــط ؤ بـــې همتـــا
د ښـــکار ســـپی ئـــې ؤ ســـاتلی　　لېـــونی شـــه بـــې غوغـــا
لاس ئـــې وروړه بـــې خبـــره　　چـــه ګانـــه ئـــې خپـــل اشـــنا
دی ئـــې وچیچـــه پـــه لاســـو　　لاعـــــلاج شـــــو لا دوا
پـــه دا کـــال لـــه مـــا قـــضا کړ　　پـــه ارمـــان ارمـــان جـــدا

(۵۷۰ – ۵۷۱مخونه)

**د "غواص" ابجدي ارزښت (۱۰۹۷) کېږي.**

**غ = ۱۰۰۰**

**و = ۶**

**ا = ۱**

**ص = ۹۰**

**ټول = ۱۰۹۷هـ ق**

**د همدې قصيده وشمي غزلي په يو بل بيت کي د دغي ناروغۍ د پای ته رسېدلو کال هم راښيي:**

کال "حصغ" شو وبا ولاړه
هم عسرت کـړه راته شـا

**د "حصغ" ابجدي ارزښت ( ۱۰۹۸) دئ.**

**ح = ۸**

**ص = ۹۰**

**غ = ۱۰۰۰**

**ټول = ۱۰۹۸هـ ق**

* * *

**خوشحال خان يوه اوږده بهاريه قصيده لري چي چي په برمول کي ئې ويلې ده او پيل ئې داسي دئ:**

پياله کــومه راپيدا شــو دا بهار
چه په هر لوري ئې ملک کړ،يو گلزار

**په دې قصيده له مغلو سره د پښتنو مهمي جگړې بيان سوي دي. د دغي قصيدې د ويلو تاريخي ماده ئې په مقطع کي داسي راوړې ده:**

د دريمي خور اول کال د غــفو ؤ
ما چه وې په بَرمَوَل کښِ دا اشعار
(۵۹۴مخ)

"غفو" د ابجد په حساب (۱۰۸۶) کېږي.

غ = ۱۰۰۰

ف = ۸۰

و = ۶

ټول ۱۰۸۶هـ ق

✶✶✶

په يوه اوږده قصيده (شپېته بيته) کي د هغې د نظمولو تاريخ داسي راته وايي:

د شوال وروستنۍ ورځ کال د "غفا" دی

مـــا چي دا شپېته بيتو نه کـــړل تحـــرير

(۶۰۰مخ)

د "غفا" ابجدي ارزښت (۱۰۸۱هـ ق) کېږي.

قصيده په دې بيت پيل سوې ده:

ناخلف مي حــــواله کړ په تقدير

نصيحت ورباندي نه کاندي تاثير

✶✶✶

خان د يوې بلي اوږدې قصيدې د ويلو نېټه داسي بيان کړې ده:

نوې مياشت د محرم "غصه" ئې کال دی

په غلــــــيم مي غـــصه وريږه دا کال

(۶۱۲مخ)

حل:

غ = ۱۰۰۰

ص = ۹۰

هـ = ۵

ټول ۱۰۹۵هـ ق

د قصيدې مطلع دا ده:

زه د شعر په کار هیڅ نه یم خوشحال
ولې خدای مې کړ په غاړه دا مقال

**ټوله قصیده ۱۳۸ بیته ده.**

* * *

**خان د خپلې یوې بې مقطع غزلې نېټه داسې راوړې ده:**

دا سږکال چه د "غصج" دی چه "غصد" شي
امـــیدوار اوســـه له بخــــــته له اقباله
(۶۲۱مخ)

**د ابجد په حساب د "غصج" ارزښت (۱۰۹۳) او د "غصد" دا (۱۰۹۴) دئ.**
**خوشحال خان وایي چې په ۱۰۹۴هـ ق کال به ئې د عمر (۷۲) کاله پوره سي.**

ستا به دوه اویا کالونه وي د عمر
سود فایده ئې راته وایه له وصال

**خان په ۱۰۲۲هـ ق کال په ربیع الاول میاشت کي زېږېدلی دئ. د زوکړې تاریخي ماده ئې افضل خان خټک په تاریخ مرصع (۳۱۰مخ چاپ ۲۰۰۶ع) کي د خوشحال خان له خپلې خولې په فارسي ژبه داسې راوړې ده:**

تـاریخ خوشـحال خټـک در ربیـع الثـانی
آمــد چــو دریــن کهنــه ربــاط فــانی
حــق گردانــاد مــرورا خیــر رســان[1]
تـــاریخش گـــشت "خیرعالمیـــانی"

**د "خیرعالمیانی" ابجدي ارزښت (۱۰۲۲) کېږي.**

**خ = ۶۰۰**
**ی = ۱۰**

---

[1] په ننګیالی د زمانې (۱۲مخ، چاپ ۲۰۰۱ع) کې دا مصرع "حق گردانا و مرد را خیر رسان" لیکلې چې چاپي تېروتنه ده.

| | | |
|---|---|---|
| ر | = | ۲۰۰ |
| ع | = | ۷۰ |
| ا | = | ۱ |
| ل | = | ۳۰ |
| م | = | ۴۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| ی | = | ۱۰ |

ټول = ۱۰۲۲هـ ق

* * *

**خوشحال په یوه بیت هغه کال چې د مغولو په لاس بندي د لاهور تر سیند پورې واته، داسې بیان کړی دئ:**

دا بیان مې د "غـــــعد" په کال ویلی
په شعبان چه د لاهور په سیند عبور کړم
(۶۳۱مخ)

| | | |
|---|---|---|
| غ | = | ۱۰۰۰ |
| ع | = | ۷۰ |
| د | = | ۴ |

ټول = ۱۰۷۴هـ ق

**دغه کال د خوشحال خان د بندیگرت کال دئ.**

**بل ځای ئې همدغه کال په یوه بل بیت کې هم "غعد" بللی دئ:**

زه چه د "غعد" په کال بندي د اورنګ زېب شوم
کــــور او خېلخانه مې پکښې ډېره وه لــــه دمَ
(۶۳۷مخ)

**خوشحال تر دغي تعميې وړاندي وايي:**

یو، یوسفزیي دي چی په ما ئې منت بار کړ
لا په اکـــــوزیو د ننگ چـــار ده مسلّمه

**خان ولي د یوسفزیو منت باردئ؟ له دې اسیته، چی د اورنگ زېب په زندان کي د خان د بندپر وخت د ده "کور او خېلخانه" پکښې دمه وه.**

**د تعمیې دبیت دوهمه مصرع په همدې شکل ماته سمه نه ایسي. سم شکل ئې په قوي احتمال سره داسي راته ښکاري:**

**"کور او خېلخانه مي پکښې ډېره وله دمه". د دغي مصرع د پای د درېو کلمو"ډېره وله دمه" معنا دا ده، چي د خان خېلخانه ډېره موده پکښې دمه وله. دغه "وله" د (ول = بودن) جمع غایب صیغه ده چي موږ تر دا نزدو وختونو پوري د (وو) په شکل لیکله. د (ول) استعمال اوس لا هم د پښتو د لوېدیځي لهجې په ځینو حوزو (روزگان او د ښوراوک شاوخوا) کي ژوندی دئ. د خوشحال په پورتني بیت کي د (ول) څرک موږ ته د دغي لهجې او کلاسیکي پښتو نزدېکت راښیي. ما (هوتک) چي (له کندهاره تراټکه) کتاب کیښ، د خوشحال خان دغه بیت ته مي ډېره پاملرنه وه کړې.**

* * *

**په یوه قصیده کي خان د ډهلي د پاچهانو مسلسل نومونه راوړي دي. د دغه شعر د ویلو نېټه ئې داسي راوړې ده:**

کـه د دې ویـلـو کـال غـواړې لـه مانـه
پــه حـساب کښِ و اوره کـال د قرشـتۀ
ابتـــدا د دې بیـــان پـــه نماز پـــښین ؤ
د ماښـام پـه وخـت ئـې شـوی نهایـت ؤ
(۶۷۱ مخ)

**د خوشحال خټک مرغلری کي دا معما ناحله پاته ده او دلیل به ئې ښايي د معما په کلماتو کي د مرّتِب دوه زړه توب وو. د خوشال خان خټک**

**کليات کې تاريخي ماده "کال د قرشت" بللې ده چي دا خبره به ئې غالباً له ارمغان خوشحال څخه رانقل کړې وي. د دې مادې ابجدي ارزښت ئې (۱۰۵۵) کېږي. خو که "کال د قرشت ؤ" تاريخي ماده وګڼو، نو بيا دا کال (۱۰۶۱) ته لوړېږي. د دې قصيدې د پای لخوا دريم بيت راته وايي چي:**

چې د هند سير مي وکړ اوس مې وو ې
ګـــــنه دا تاريخ لارغـــه زما په نيت ؤ

**د دې بيت له مخي څوک ويلای سي چي دا قصيده هند ته تر تګ وروسته ويل سوې ده. د (ننګيالی د زمانې) ښاغلی مؤلف د اروانښاد دوست محمدخان کامل له خولې ليکي چي "د ۱۰۵۸ هـ ق کال ربيع الاول د ۱۶۴۸ م کال د اپريل دويم موږ خوشحال خان د اټک په بله غاړه کې مومو. پدې سفر کي ده يو اوږد نظم د ميرزاابوالحسن اصف خان د کوم شاندار محل، د محل د باغونو او د باغونو د زړه وړونکو مناظرو په ستاينه کې ليکلی دی" (وګ: همدغه اثر: ۳۲ مخ، د ۲۰۰۱ع کال چاپ). که هند ته دا د خان لومړی سفر وبولو، نو پورتنۍ تاريخي ماده بايد "کال د قرشت ؤ= ۱۰۶۱هـ ق" قبوله کړو. په "کال د قرشت = ۱۰۵۵هـ ق" کي خان د هندوبار لتي نه وې ليدلي.**

* * *

**خوشحال په يوه رباعي کي د خپل يو خوب بيان کوي:**

شـپه د بـرات وه يـو خـوب مـي وليـده
کال ئې "غصه" دی هرګور مي ښه ليده
دوه توري ماتي شوې يوه مي روغه شوه
دويـــم صمـــصام مـــي پـــه رغېـــده دی
(۸۰۰ مخ)

**غصه = ۱۰۹۵هـ ق**

* * *

**يوه بله رباعي**

پنځـــه بارونــه دي بـــردنځـــې غـــم دی
ورمېـــږد خلقـــو تـــرلانـــدي خـــم دی
پنځـــه پـــه نـــورو، پـــه تـــا دوه کـــم دی
خوشـــحاله شـــکر چـــه بـــار دي کـــم دی
(۸۴۹مخ)

له "پنځه بارونه" څخه د خوشحال خان مراد د اسلام پنځه بناوي دي. کلمه طيبه، لمونځ، روژه، حج، زکوة. په دې پنځو کي حج او زکوة پر بډايانو فرض دئ. خوشحال په لاس کي دومره خلاص وو او سخاوت ئې دومره زيات وو، چي له ټولي خانۍ او بډايۍ سره ئې هيڅ وخت ځان د نصاب مالک سوی نه وو. ځکه نو دی وايي چي پر ده باندي له دې پنځو بناوو څخه درې بار دي او حج و زکوة ورباندي فرض سوی نه دئ.

٭٭٭

بله رباعي:

وايـې صـوفي شـه، صـوفي دي تـه شـې
درومـــه نااهلـــه شـــپږ.ســـو شـــپيته شـــې
کـــه يـــار ســـاقي وي عمـــر بـــاقي وي
لا بـــه د ميـــو ښيـــښې کـــړم تـــشې
(۹۲۹مخ)

په (مرغلري) کي د رباعۍ دريم بند "که يار ساقي دی عمر باقي دی" ليکل سوی دئ، چي سهی نه دئ. (د خوشحال رباعيات: ۲۷۹مخ) او د خوشال خان خټک کليات په (۵۲۷مخ) کي ئې سم کړی دئ.

د مرغلري مرتب د کومي نسخې د محشي په حواله ورته کښلي دي: "... يعني خس يې، ځکه چه خس په حساب د ابجد (۶۶۰) دی". دغه عدد د خوشحال رباعيات کي هم، بې له دې چي د مرغلري حواله ورکړي، په لمنليک کي ورته کښلی دئ.

دغه راز عمليې ته د عددي تبديل عمل وايي (وګ د همدې ليکني د

سر برخه). په عددي تبدیل کي قرینه باید هرومرو موجوده وي، کنه نو بیا دغه راز معما ته ګونګه معما وایي. ځکه د مطلوبي معنا له پاره ئې هیڅ راز قرینه نه ده راوړې او لوستونکی به ئې پخپل درایت سره حل کوي.

***

بله رباعي:

یــار مــي د شــپږو تــر مــنځ اووم دی
چه څوک ئې نه ستایي په حسن ګرم دی
چــه رابنــکاره شــي پــه مــا رنهــا شــي
چــه مــخ ئــې نــه ویــنم پــه مــا تــورتم دی
(۹۳۶مخ)

د (مرغلري) مرتب په حاشیه کي ورته کښلي دي: "یعني په اوو ستورو کښ چه شپږ نور سیارات دي، اووم زما یار دی چه هغه نو لمر دی".
د خوشحال رباعیات (۱۵۱مخ) کي هم دغه شان تشریح ورکړه سوې ده.

***

بله رباعي:

فرښــتې لــه نــوره، پیــری لــه نــاره دی
کــه پــرې خبــر یــې ســړی لــه چــاره دی
ځکــه دا هــسي دېــري فتنــې کــا
لـــه بادو خاکـــه لـــه آب و نـــاره دی
(رباعیات: ۲۱۶مخ)

چار = ۴ عنصره (باد، خاوري، اوبه، اور).

***

بله رباعي:

کــال د غفــج ؤ خیبــر کــې هــورې
مغــل بنــدي وو، هــم کونــډې بــورې

مومنــد شــينواري ځــو اپريــدي وو
وا ړو وهلـــــې د يـــــادو تــــورې
(رباعيات: ۲۶۸مخ)

**غفج = ۱۰۸۳ه ق**

***

**بله رباعي:**

نــن بيا خپــل بخــت تــه زما تــسليم دی
خُــرم بــه او ســم فــال مــي د مــيم دی
پــه درد و غــم کــښې زمــا غلــيم دی
راالـــوتلی د نـــصرت نـــسيم دی
(رباعيات: ۱۲۷مخ)

**دا رباعي د خوشال خان خټک کليات (۴۴۱مخ) کې مسخه سوې ده او د (غليم) پر ځای (عليم) او (د نصرت نسيم) پر ځای (د نصرت تبسم؟) راغلی دئ. په رباعيات کې هم د (نن) پر ځای (تن) ليکل سوی دئ. په دې رباعي کې "فال مي د ميم دی" د معما په حساب نه دئ راوړل سوی، بلکې د فال کتلو په مقصد راوړل سوی دئ. د فالنامې له مخې که د چا فال د (م) پر توري برابر سي او غليم ئې په مخ کې ورته ولاړ وي، دی بايد يرغل پر و نه کړي. د خان مقصد همدا ټکی دئ. خوشحال خان په فالنامه کې ويلي دي:**

"م" په فـال نه دی ښـاغلی
په ورانيې دی راغـــــلی
که غلـيم لـرې لـه وړاندې
مه کړه قصد په غليم باندې
(فالنامه د مصحف: ۴۶مخ)

***

**بله رباعي:**

سـړکال چـې کـال د "رحمـت تـم" دی
بـاران پـه هـر چیرتـه پـه غـره پـه سـم دی
پس له شپږ میاشتو په چنگابښ شروع شو
بـه هـره ورځـې تـر نـیم ضـیغم دی
(کلیات: ۴۴۷مخ)

**حل:**

ر = ۲۰۰
ح = ۸
م = ۴۰
ت = ۴۰۰
ت = ۴۰۰
م = ۴۰

ټول = ۱۰۸۸هـ ق

**د دغي وچکالۍ بیان خان په یوه بل شعر کي هم راوړی دئ:**

شپږ اووه میاشتي په هند په خراسان
چرتـه ونـشه پـه سـم پـه غـره بـاران
د اوبــو د وښــو ډېر کمامـــت وشـــو
ځای په ځای شول د غلي نرخونه ګران
چه باران په جهان وشو پس له یأسه
فـتح البـاب و پـه تحویـل د سـرطان
د اسـد تـر نویـشتمه ورځ پـه ورځ شـي
پـه باران سره نهـال شـو درست جهـان
پـدا کـال چـه شـاه عـالم راغـی لـه هنـده
صـــلح وشـــوه د مغلـــو د افغـــان

دا سړکال چه ئې تاریخ "رحمت تم" دی
په وګړي مبارک دی په هر شان

(۵۶۴مخ)

* * *

**بله رباعي:**

تر عین تېر شوم دا هسې زه وینم
احول یو دوه وینې زه یو اووه وینم
ترفې که ورشم غفد سړکال دی
اووه به شل وینم دا کار زه ښه وینم

(د خوشحال رباعیات: ۲۲مخ)

**په لمنلیک کې ورته کښلي دي:**

**ع = ۷۰**
**ف = ۸۰**
**غفد = ۱۰۸۴**

**خودا رباعي نوره شننه هم غواړي.**

* * *

**خوشحال د لویې تبې د شیوع کال په دې ډول بیان کړی دئ:**

سړکال چه د "غواص" دی
په هر لور دي تبجن ډېر
(۹۵۶مخ)

**غ = ۱۰۰۰**
**و = ۶**
**ا = ۱**
**ص = ۹۰**

**ټول = ۱۰۹۷هـ ق**

**په دغه کال د خان زوی (بخت ناک) د دغو تبو له امله ومړ.**

بخت ناک په دوه هفتې شه
تر فـــاني جـــــهانه تېر

***

**په یوه قطعه کي وايي:**

میاشت د لومړی خور ده
چه داخل شوم په مـیدان
کال ثخـــــه و "هــفغ" و
بیا تحـــویل د سـرطان
(۱۰۲۶ مخ)

| | | |
|---|---|---|
| ه | = | ۵ |
| ف | = | ۸۰ |
| غ | = | ۱۰۰۰ |
| | | ټول ۱۰۸۵ هـ ق |

***

**خوشحال خان د خپلي مور او مشري مېرمني د مړيني تاريخ داسي ويلی دئ:**

چې د پلار د مرگ مي تېر شو پوره قرن
د صـفري پــه میاشـت و مــړه د مــا مــور
پـــــوره زر اتیا کلونــــه د هجـــرت وو
چـې د مـور پـه خـوا مـې و مـړ مـشر کـور
(۱۰۲۶)

**له "قرن" څخه مور، اوس د سلو کالو معنا اخلو خو دلته مراد سل کاله نه دي. په قاموسونو کي قرن کله سل کاله، کله دېرش او کله اتیا کاله تر اکل سوی دئ (غیاث اللغات). د خوشحال خان مراد دلته دېرش کاله**

**دئ ځکه پلار ئې په ۱۰۵۰ هـ ق د شوال په لومړۍ نېټه د پنجشنبې په ورځ له یوسفزو سره د بلړ په جنګ کي مړ سوی دئ. (ننګیالی د زماني ۲۰ مخ)[1] او مور ئې دېرش کاله وروسته په (۱۰۸۰ هـ ق) کی مړه سوې ده.**

***

**د غلې د ګرانۍ یو کال داسي یادوي:**

د نــــوروز پــــه دوولــــسم
میاشت صفر کـال د "غفـط" و
غلـه ګرانـه کـښت زبـون شـو
پــه عـــالم نـــازل ســـخط و
لـــوی بـــاران وشـــو پـــه خلـــقَ
د وګـــــړي وار غلـــــط و

| | | |
|---|---|---|
| غ | = | ۱۰۰۰ |
| ف | = | ۸۰ |
| ط | = | ۹ |
| ټول | = | ۱۰۸۹ هـ ق |

***

**په یوه بیت کي د واوري د اورېدلو کال راښیي:**

د "غفا" په بوګه پرېوتې په غرونه
تر کابله تر اټکه سپـــیني واوري
(۱۰۴۶ مخ)

| | | |
|---|---|---|
| غ | = | ۱۰۰۰ |
| ف | = | ۸۰ |
| ا | = | ۱ |
| | | ۱۰۸۱ هـ ق |

[1] په فراقنامه ۶۰ مخ کي ئې د شهبازخان مړینه له مندړو سره په جنګ کي بللې ده.

**(بوګه) سلواغې ته وايي او دلته مراد د (دلو) مياشت ده. ګويا دغه واوري د دلوي په مياشت کي اورېدلي وې.**

***

**بل ځای د فراقنامې د تاليف نېټه داسي بيانوي:**

کال د غم لاړ مياشت اختر وه

دا نـــــامه چې نظـم زر وه

(فراقنامه: ۷۲مخ)

**د فراقنامې مرتب ليکي چي علامه حبيبي له دغه بيت څخه د فراقنامې د تاليف نېټه داسي رااېستلې ده:**

**نامه (۹۶) + نظم (۹۹۰) = ۱۰۸۶ – وه (۱۱) = ۱۰۷۵هـ ق.**

**دلته بايد د لومړۍ مسرۍ لاړ د (منها يا تفريق) په معنا وي چي حکم ئې د (وه = ۱۱) پر تللو (تفريق) باندي کېږي = کال د غم، مياشت اختر، لاړه (وه)[1].**

---

[1] دا تاريخي ماده يو څه ابهام لري او که چا ته په رتنبهور کي د خان د قيد زمانه معلومه نه وي، د **۱۰۷۵**هـ ق کال رااېستل ځني مشکله خبره ده. د معما سيده حل، چي پر قراينو دي ولاړ وي، داسي هم کېدلای سي چي لومړۍ خبره دا ده چي دا نامه خان تر بند وروسته ويلې ده. دی وايي چي د غم کال "لاړ". که دا حدس سم وي نو ئې د تاليف کال بايد تر **۱۰۷۹** وروسته وي. خو "کال د غم = **۱۰۹۵**" د خټکو شاعرانو په کلام کي بل ځای هم موندلای سو. دا کال د وبا کال وو چي عبدالقادرخان خټک ئې تاريخي ماده "کال دغم" ويلې ده. "کال دغم لاړ" يعني د وبا کال تېر سو. په دې حساب نو څوک ويلای سي چي د فراقنامې د تاليف په کال سنه **۱۰۹۵** تېره سوې وه او **۱۰۹۶** هـ ق وه. خو څرنګه چي خوشحال خان د **۱۰۷۴**هـ ق کال د روژې له مياشتي څخه تر **۱۰۷۹** هـ ق کال پوري کله د مغلو قيدي او کله بيا نظربند وو، نو ځکه بايد د فراقنامې د تاليف نېټه په همدغو کلونو کي ولټول سي. دا حقيقت هم بايد په پام کي ولرو چي خان، فراقنامه د بازنامې په شان په يوه کښ، بې له وقفې نه ده ويلې، بلکي بېلابېل نظمونه ئې په بېلابېلو وختو کي ويلي دي. دا خبري د پورتنۍ معما مبهم توب نور هم ژور کوي. د خان نوري معماوي داسي ابهامات نه لري.

* * *

**خوشحال خان د خپل منظوم اثر بازنامې د ليکلو نېټه داسي راښيي:**

زر پنځــه اتيا کلونـــه د هجـــرت دي
د رجـب ورځـي آخـر شـوې نهايـت دي
پـه لـړم کـښې مـې شـروعه بازنامـه کـړه
پـه شپږ ورځې مـې تمامـه پـه خامـه کـړه

(بازنامه: ۴۶ مخ د پېښور چاپ ۱۹۸۵ع)

* * *

# د عبدالقادر خان خټک په کلام کي

عبدالقادر خان خټک په يوه اوږده قصيده کي د پاک خدای د حکمتونو او نعمتونو د بيان په ترځ کي يو بيت لري چي د معما نوم پر ايښوول کېدلای سي. ده ويلي دي:

که څلور دي که پنځه که شپږ اووه دي
همـــگي په حـــکم کار د کـــردگار کا

(ديوان: ۱۹۵ مخ، د کندهار چاپ)

**حل:**

**له څلور څخه مراد څلور عنصره، له پنځو څخه مراد پنځه اقليمه، له شپږو څخه مراد شپږ جهته او له اوو څخه مراد اووه اسمانونه دي او له دې ټولو څخه بيا مراد ټول کائنات دي. بل ځای:**

چي ولاړ نشې په غفلت عبدالقادره
که پو هېږي غنيمت دی دال و مـيم

(۲۰۹ مخ)

**له "دال و ميم" څخه مراد (دم) دئ چي د "شېبه، لحظه" معنا لري او شاعر وايي چي دا حاضره شېبه، دم گڼی غنيمت وگڼه.**

**بل ځای د خپل وراره "معظم" د ویرني په ترڅ کي د هغه د عمر او د مړيني د نېټې په باب وايي:**

غواصي کوم د اوښيو په درياب کښي
نه ئې مـــــومم معـــظم دُرناياب شو
درويشت کاله د ده عـــمر زر اته نوي
د هجرت حساب په حــکم د کتاب شو
(۲۱۱مخ)

**د عبدالقادرخان خټک دېوان د کندهارچاپ د ۲۱۱مخ په حاشيه کې کښلي دي: "معظم د خوشحال خان خټک له اولادې څخه ؤ، دا قصيده د ده مرثيه ده". معظم خان د بهرام خان زوی او د خوشحال خټک لمسی وو. خوشحال خان ئې هم مرثيه ويلې ده. بل ځای د وبا د کال تاريخ راښيي:**

پـه هـر کالـه کـښي د مـرگ مـاتم دی
وبـــا نيـــولی اکثرعــــالَم دی
ښـه ښـه يـاران ئـې ځـلـه جـدا کـړل
تاريخ ئې راغلی چې "کال د غم" دی

**حل: "کال دغم" = ۲۰ + ۱ + ۳۰ + ۴ + ۱۰۰۰ + ۴۰ = ۱۰۹۵هـ ق**

**په دغه مخ کي د حضرت آدم بنوري رحمة الله عليه د خليفه شيخ سعدي لاهوري رحمة الله عليه د وفات تاريخ په يوه فارسي رباعي کي بيانوي:**

شـــيخ ســـعدی قـــدوه اهـــل يقـــين
چـون منـور گـشت ازو زيــر زمــين
از خِــرَد جــستم حــساب رحلــتش
درجـوابم گفــت "شــيخ مــومنين"

**حل: "شيخ مومنين" = ۱۱۰۶هـ ق**

**د دېوان په ۲۲۸مخ کي د خپل پلار خوشحال خان خټک په "ستاينه**

**او دوعا" کې یوه مربع لري چې وروستی بند ئې داسې دئ:**

لام او بې ئې د دلبرو دي ستايلي
لعل او دُر ئې د وينا په تار پيېلي
لبږ د ډېره ما د ده د حال ويلي
لکه څوک چې د يار مخ کا نمر مثاله

**له "لام وبې" څخه مراد (لب = شونډې) دي.**

***

**عبدالقادرخان خټک د شيخ سعدي (گلستان) له پارسي څخه په پښتو ترجمه کړی او نوم ئې "گلدسته" پر ايښی دئ. د دغې ترجمې د بشپړولو کال ئې داسې بيان کړی دئ:**

زر سل څلېرويشت د سن کلونه
له گلستانه چې دا گلونه
ټول شول ترې جوړه چې گلدسته شوه
يادگار به پاته شي موږه به ځونه

**۱۱۲۴هـ ق**

(په گلشن روه کې د بابوجان: ۳۹مخ)

**سيد سرفراز علی رضوي د (مخطوطات انجمن ترقی اردو) په ۸۷ مخ چاپ ۱۹۶۷ع کراچي کې گلدسته د گلستان "انتخاب" بللې ده.**

***

**اروانښاد پوهاند رشتين د ښاغلي همېش خليل له خولې د سعدي د گلستان د دغې پښتو ترجمې نېټه داسې ليکلې ده:**

دا کتاب چې گلدسته د گلستان ده
گل چينې ئې کا عبدالقادر خټک
که تاريخ ئې د آغاز د انجام غواړې
سن د هجر په شماره د "غق دک"

(ادبي او تاريخي سمونې: ۱۵۹مخ)

**حل:**

**غق = ۱۱۰۰**

**دک = ۲۴**

**ټول ۱۱۲۴هـ ق**

***

**اروانښاد پوهاند صاحب د همدې اثر په ۱۶۲مخ کې د عبدالقادر خان خټک د دېوان د بشپړولو کال د دې لاندې بيت په استناد(۱۱۱۳ – ۱۱۱۴هـ) بللی دئ:**

سن زر سل د جدايیٔ څو ارلس د پاسه
دا غـــزل مې په بياض باندې رقـــم کړ

**خو د دغه بيت له رويه د دېوان د تکميلولو کال اټکل کول، د تأمل وړ دئ.**

***

**عبدالقادرخان خټک د خپل بل منظوم اثر (يوسف زليخا) د ترجمې د پوره کولو کال داسې راښيي:**

سن د هجر غين و قاف و
اته کم د پاســـه کاف و
چې تمام شو دا کـتاب
الله اعـلم بالصواب[1]

**حل:**

**۱۱۱۲هـ ق**

---

[1] په گلشن روه کې دبابوجان ...: ۴۱مخ . هورې د دوهم نيم بيتي "کاف" هم "قاف" ليکل سوی دئ چې د ټايپيسټ سهوه ده. زما (هوتک) په خطي نسخو کې يو بې نومه جونگ سته هورې دغه ماده سته. په دې ډول:

سين د هجر غين و کاف وو – اته کـم د پاســـه کاف وو
چـــه تمام شـــه دا کتاب –په پښـــتو شه انتـــخاب

(غ = ۱۰۰۰) + (ق = ۱۰۰) + ( ک = ۲۰) – (۸) = ۱۱۱۲ هـ ق.

* * *

## د آزادخان خټک په کلام کي

آزادخان د خوشحال خټک زوی دئ. ارواښاد پوهاند رشتین کښلي دي چي: "ده د خپل ورور اشرف خان هجري په (پر) مرگ دا بيت ويلی دی":

د هجرت زر سل شپږ ؤ اشرف خان چي فوت شو ياره
غم اندوه د ده تاريخ دی که حساب کړې ويې شماره
(ادبي او تاريخي سموني: ۹۰مخ)

د خوشحال خان د زوی آزادخان د ادبي ژوند په باب زما سره د ويلو څه نسته.

* * *

## د گوهر خان خټک په کلام کي

گوهر خان خټک د خوشحال خټک دانشمند زوی دئ. دی د افضل نامې په نامه يوه منظومه ترجمه لري چي د هغې په خاتمه کي څو بيته د (پښتو نثر اته سوه کاله) په ۳۷۹ مخ دوهم چاپ کي داسي راغلي دي:

د فارسي ترجمه گرانه — په پښتو کړه ما اسانه
پښتانه چي ئې لولينه — ما دي هم پرې يادوينه

مسايل پکې قوي دي — واړه دُر نبوي دي
د تاريخ ئې خاتمه — شوه قوي افضل نامه
دا پښتو د دې گوهر — د خوشحال خټک پسر

د دغو بیتو په باب د نوموړي کتاب مؤلف ښاغلي سرمحقق زلمي هیوادمل داسي کښلي دي: "په لوړو بیتونو کې یو نیم بیتی دی (شوه قوي افضل نامه). د (افضل نامه) له یادونې دوکتور راج ولي شاه خټک دا نتیجه اخیستې ده چي د کتاب نوم به افضل نامه وي، خو زما په فکر په همدې بیت کې لومړۍ مسرۍ (د تاریخ ئې خاتمه) په دې ګواهي لي چي په بله مسرۍ کې د کتاب د خاتمې تاریخ نغښتی دی. د (قوي افضل نامه) له کلماتو د ابجد په حساب (۱۱۲۳) تاریخ راوزي. که خبره دغسې وي، لکه چې زه فکر کوم نو دا فقهي کتاب ګوهرخان له قلب السیر (د ۱۱۲۰هـ ق ترجمه) درې کاله وروسته ترجمه کړی دی".

زما (هوتک) په نظر د ښاغلو دوکتور راج ولي شاه خټک او سرمحقق زلمي هیوادمل دواړو استنتاج سهي دئ. له دغه نیم بیتي څخه هم د کتاب د خاتمې تاریخ راوزي او هم مترجم د خپل کتاب نوم راښیي. په پښتو کتابو کي داسي آثار نور هم سته چي مؤلف یا مترجم ئې د کتاب په نامه کي د هغه د ختمولو کال هم موندلی وي. علامه حبیب الله کندهاري (حبواخندزاده) د خپل ترجمه سوي کتاب پښتو منهاج العابدین بل نوم "اخلاق التائبین" ایښی دئ چي ابجدي ارزښت ئې ۱۲۳۶هـ ق کېږي او دا د کتاب د ختمولو کال هم دئ.

* * *

# د کاظم خان شیدا په کلام کي

کاظم خان شیدا د خپل دېوان د ترتیبولو تاریخي قطعه داسي ویلې ده:

پــــه دا بــــاب وه اســـتدعا د عزیزانـــو
چـــي مجمـــوع شـــي حـــلاوت د مقـــالات

۸۳

د تدوین تاریخ ئې رأی په دا شان ووې
"د شیدا دیوان دی شهد او څه نبات"

**۱۱۸۱هـ ق**

(دیوان: ۴۹مخ د حنیف خلیل چاپ)

**حل:**

**په دغه تاريخي ماده کي (ځ) ته د (ج) ابجدي ارزښت (۳) ورکول سوی دئ. په دې ډول:**

| | | |
|---|---|---|
| د | = | ۴ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ي | = | ۱۰ |
| د | = | ۴ |
| ا | = | ۱ |
| د | = | ۴ |
| ي | = | ۱۰ |
| و | = | ۶ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| د | = | ۴ |
| ی | = | ۱۰ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| هـ | = | ۵ |
| د | = | ۴ |
| ا | = | ۱ |
| و | = | ۶ |

ځ = ج = ۳

ه = ۵

ن = ۵۰

ب = ۲

ا = ۱

ت = ۴۰۰

ټول = ۱۱۸۱ هـ ق

***

**د محمودخان(۱) د مړيني تاريخ ئې په نظم کي داسي ويلی دئ:**

خــود بــه پــو هېږي کــه خردمنــد يــي
بــــده بــــلا ده غــــم د دوســــتانو
چــې محمود خــان دی لــه دنيــا تلــل
غمونــــه قــــوت دي د غمخوارانــــو
چــــې بېلتانــــه ئــــې لــــه ډېــــره تــــاوه
بــــل کــــړی اور دی پــــه اشــــنايانو
تــــاريخ ئــــې دا کــــړه ســــوَيه خــــاطره
"بېلتــــون لنبــــه ده پــــه ښــــو يــــارانُ"

**وروستۍ مصرع ته په عدد (۱۱۶۱) ليکل سوي دي چي دا عدد هغه وخت له تاريخي مادې څخه راوزي چي ليکدود ئې هغه راز وي لکه ما چي پور ته کښلی دئ.**

**په کابل چاپ کي "بېلتون لمبه ده په ښو يارانو" چي د دې جملې ابجدي ارزښت (۱۱۶۵) کېږي. په پېښور چاپ همېش خليل کي "بېلتون**

---

(۱) دغه محمود خان بايد تحقيق سي

لنبه وه په ښو يارانو" چي د دې جملې ابجدي ارزښت بيا (۱۱۷۷) کېږي. په پېښور چاپ حنيف خليل کي "بېلتون لمبه وه په ښو يارانو" چي ابجدي ارزښت ئې (۱۱۶۷) کېږي. يوازنی چاپ  چي دا تاريخي ماده ئې سمه ضبط کړې ده، د سيدانوارالحق (ديوان کاظم شيدا مع اردو ترجمه و تشريح) دئ، خو هورې بيا د (بيلتون) کلمه (بلتون) ليکل سوې ده او که چاپي غلطي نه وي، نو به د (ب) توری غالباً کسره لري چي هغه هم له چاپه پاته سوې ده. د معمائيونو په نظر خو کسره د ( ی = ۱۰) قيمت اخلي مگر د دغه راز (بلتون) اړتيا ما ته موجه نه ښکاري او دليل مي دا دئ چي په نوټ کي ئې بيا دا کلمه په سمه توگه (بيلتون) ثبت کړې ده (وگ: د همدغه چاپ ۱۰۴۹مخ). همدا پېښه په يوه بله قطعه کي داسي بيان سوې ده:

فلــک کجــرو دی آثـــار ئـــې وينـــې
شــغال چـــې ظلـــم پـــه زمـــري کانـــدي
کلـــــه عجــــب وي لـــــه تعجبــــــه
کـــه پـــه ژړا کـــې چـــرې وخانـــدې
تـــاريخ ئـــې دا رنـــگ خـــرد بيـــان کـــړ
دا خـــان شـــهيد دی آه پـــه حـــق بانـــدې

(ديوان: ۴۱۷ مخ حنيف خليل چاپ)

د قطعې له ظاهري شکل و سکښت څخه داسي ښکاري چي تاريخي ماده بايد(دا خان شهيد دی آه په حق باندې) وي. دې قطعې ته په سر کي په ځينو نسخو کي (ايضاً) ليکل سوی دئ. په کابل چاپ کي د تاريخي مادې عدد نسته، په پېښور درو سرو چاپونو کي (د همېش خليل، د سيدانوارالحق او حنيف خليل) ئې تر تاريخي مادې لاندي په عدد (۱۱۶۱) کښلي دي. له سيدانوارالحق پر ته چي (باندې) ئې د (بانِد) په شکل ليکلی دئ، د نورو ټولو چاپو ليکدود يو راز دئ. د دغي جملې ابجدي ارزښت

(۱۱۷۷) کېږي. په دې ډول:

| | | |
|---|---|---|
| د | = | ۴ |
| ا | = | ۱ |
| خ | = | ۶۰۰ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ه | = | ۵ |
| ی | = | ۱۰ |
| د | = | ۴ |
| د | = | ۴ |
| ی | = | ۱۰ |
| آ | = | ۱ |
| ه | = | ۵ |
| پ | = | ۲ |
| ه | = | ۵ |
| ح | = | ۸ |
| ق | = | ۱۰۰ |
| ب | = | ۲ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| د | = | ۴ |
| ی | = | ۱۰ |

ټول = ۱۱۷۷

که د سیدانوارالحق ثبت ته اعتبار ورکړو او (باند) د (باندي) په شکل ولیکو او د کسرې (زېر) له قیمته چي د (ی = ۱۰) معادل دئ، صرف نظر وکړو، نو به د تاریخي جملې ټول ارزښت (۱۱۷۷ – ۱۰ = ۱۱۶۶) سي چي بیا هم تر مطلوبي سنې (۱۱۶۱) پنځه کاله زیات دئ. که دا قطعه رشتیا هم د محمودخان پر مړینه باندي ویل سوې وي، نو په تاریخي ماده کي باید (دا = ۴ + ۱ = ۵) شامل و نه ګڼل سي او تاریخي ماده باید داسي وي:

دا "خان شهید دئ آه په حق بانْدِ". خو فکر مو وي چي د وروستي دال د کسرې (زېر) قیمت مو محاسبه کړی نه دئ.

زه چي پر شعري صنایعو باندي د کاظم خان شیدا تسلط ته ګورم، دغه راز مبهمه معما د ده له شعري کفایت سره په تضاد کي بولم او داسي فکر را ولوېږي چي په دې معما کي د دونه تعقید ځای نسته او تاریخي ماده ښایي هماغه ټوله جمله (دا خان شهید دی آه په حق باندې = ۱۱۷۷هـ ق) وي چي په دې ډول به نو دا قطعه د محمودخان پر مړینه نه وي ویل سوې او له (ایضاً) څخه به مراد دا وي، چي دا بله قطعه هم یوه معماده. (والله اعلم بالصواب).

* * *

دا بله قطعه ئې د میاعمر صاحب رحمة الله علیه پر مړینه باندي ویلې ده:

د میا په درد و غم کښې<br>
ناله ډېره شوه هم آه<br>
وایه دا عمر ولي<br>
ورسره رحمت الله<br>
علیه ورسره ضم کړه<br>
په تاریخ به شې آګاه

(دیوان: ۲۱۴مخ، کابل چاپ)

دا قطعه  په ټولو چاپونو کي همداسي ضبط ده. يوازي ئې د (حنيف خليل چاپ دېوان،۴۱۸مخ) کي د اول نيم بيتي (کښې) په (کې) اړولی دئ. د علامه رشاد رحمة الله عليه په اثر (د څمکنو مياعمر رحمة الله عليه،۲۹مخ) کي هم د (کښې) پر ځای (کی) ليکل سوی دئ. له کابل چاپ پر ته ئې په نورو ټولو چاپونو کي ئې په عدد (۱۱۹۰) هم ورسره ليکلی دئ.

د مياصاحب رحمة الله عليه د وفات تاريخي ماده (دا عمر ولي رحمت الله عليه) ده چي ابجدي ارزښت ئې داسي محاسبه کېدلای سي:

| | | |
|---|---|---|
| د | = | ۴ |
| ا | = | ۱ |
| ع | = | ۷۰ |
| م | = | ۴۰ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| و | = | ۶ |
| ل | = | ۳۰ |
| ي | = | ۱۰ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| ح | = | ۸ |
| م | = | ۴۰ |
| ت | = | ۴۰۰ |
| ا | = | ۱ |
| ل | = | ۳۰ |
| ل | = | ۳۰ |
| هـ | = | ۵ |
| ع | = | ۷۰ |

ل = ۳۰
ی = ۱۰
ه = ۵

ټول = ۱۱۹۰هـ ق

***

**کاظم خان شیدا د میا عمر صاحب د وفات بله تاریخي قطعه هم ویلې ده:**

میا عمر صاحب، پخپل دوران کښې
چې کشاده ئې، د فیض باب وه
شاه و گدائې، په در حاضر وو
مرجع د خلقو، عالم مآب وه
تاریخ ئې دا دی، د رحلت واوره!
(شیخ اجل وه، قطب اقطاب وه)

(۲۱۵ مخ، د کابل چاپ)

**د (شیخ اجل وه قطب اقطاب وه) ابجدي ارزښت (۱۱۹۰) دئ. په دې ډول:**

ش = ۳۰۰
ي = ۱۰
خ = ۶۰۰
ا = ۱
ج = ۳
ل = ۳۰
و = ۶
ه = ۵
ق = ۱۰۰
ط = ۹
ب = ۲

ا = ۱
ق = ۱۰۰
ط = ۹
ا = ۱
ب = ۲
و = ۶
ه = ۵

ټول = ۱۱۹۰هـ ق

له کابل چاپ پرته په نورو ټولوچاپونو کي تر تاریخي مادې لاندي په عدد (۱۱۹۰) کښل سوي دي. د کابل چاپ په ثبت کي د دوهم، څلرم او شپږم نیم بیتي (وه) د (ؤ) په شکل لیکل سوی دئ او په دې ډول ئې تاریخي ماده لس کاله مخکي کېږي (۱۱۸۰) ده. د حنیف خلیل چاپ دېوان (۴۱۸مخ) کي د پورتنیو نیم بیتیو (وه) د (و) په بڼه ثبت دئ او د لومړي نیم بیتي (کښې) ئې هم (کې) لیکلی دئ. د دغه دیوان له ثبت سوي مادې څخه هم (۱۱۸۰) عدد لاس ته راځي چي میاصاحب رحمة الله علیه تر دغي سنې وروسته لس کاله نور هم ژوندی وو. د دغه راز ناسم ثبت تر اغېزې لاندي اروانباد پوهاند رشتین د پېښور د جمهوریت اخبار د ۱۹۵۷ع کال د جولای میاشتي په ګڼه کي د میاعمر صاحب د مړیني کال (۱۱۸۰هـ ق) بللی دئ. دې تېروتني ته علامه رشاد (د څمکنو میاعمر رحمة الله علیه) کتاب په ۲۸مخ کي اشاره کړې ده.

علامه رشاد کښلي دي چي د میا عمر صاحب مرید (دادین) د خپل پیر د مړیني تاریخي ماده داسي ویلې ده:

سن (غصق) د پنجشنبې په ورځ اې جانه
د رجب په غُــرې لاړ شـــه له جـــهانه

د (غصق) ابجدي ارزښت (غ = ۱۰۰۰ + ص = ۹۰ + ق = ۱۰۰ = ۱۱۹۰هـ

ق) دئ.

د کاظم خان شیدا د دېوان په ټولو چاپونو کي د اول نیم بیتی وزن دوې ځپې لږ دئ او دا کمبوتي علامه رشاد رحمة الله علیه پخپل اثر (د ځمکنو میاعمر صاحب) کي د (صاحب) کلمې په زیاتولو سره پوره کړې ده. د (صاحب) کلمه باید په دغه نیم بیتي کي د عروضي سکښت په حکم د لومړۍ ځپې په فشار تلفظ سي.

* * *

کاظم خان شیدا د خپل وراره خوشحال خان چي د سعدالله خان (اسدالله خان) زوی وو[1]، د مړیني تاریخي قطعه داسي ویلې ده:

د خوشحال په جدائي کښې باور وکړه
خسته زړه زما کباب و آه مي سیخ دی
چي روزي ئې شهادت شو په ځوانۍ کښې
نور په گور د شهید ځوان شه دا تاریخ دی

(د کابل چاپ دېوان: ۲۱۵مخ)

له کابل چاپ دېوان پرته نور ټول چاپونه له تاریخي مادې سره به عدد (۱۱۷۷) کال هم لري. دغه کال له "نور په گور د شهید ځوان شه" جملې څخه په دې شرط راایستل کېدلای سي چي (گ) او (ځ) ته په ترتیب سره د (ک) او (ج) قیمتونه ورکړو. په دې ډول:

ن = ۵۰
و = ۶
ر = ۲۰۰

---

[1] د افضل خان ختک د زوی سعدالله خان (اسدالله خان) په باب وگورئ: آواره شیدا، د حبیب الله رفیع لیکنه، ۸۴ – ۸۶مخونه، چاپ ۱۹۹۱ع. اروابناد دوست محمد خان کامل صاحب د تاریخ مرصع په مقدمه ۴۰ مخ کي دغه سعدالله خان او اسدالله خان د غالباً په قید یو سړی گڼي.

| | | |
|---|---|---|
| پ | = | ۲ |
| ه | = | ۵ |
| گ | = | ۲۰ |
| و | = | ۶ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| د | = | ۴ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ه | = | ۵ |
| ی | = | ۱۰ |
| د | = | ۴ |
| ځ | = | ۳ |
| و | = | ۶ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ه | = | ۵ |
| ټول | = | ۱۱۷۷هـ ق |

***

**کاظم خان شیدا هغو ستونزو او ترخو ورځو ته چي حافظ رحمت خان برېخ ته د نواب احمدخان بنگښ پر سر د صفدر جنگ او مرهټو له لاسه ورپېښي سوي وې، په یوه شعر کي اشاره کوي:**

پښتانه د "کټهېر" متزلزل دي
که هر څو وو لکه غر، قوي بنیاد
چي برکي او ایراني په یو ځای شول
منتشر ئي په دیار کښي شو بېداد

و تــاريخ تــه ئــې حيــران د واقعــات وم
راتــه وويــل خپــل رأی "عظــيم فــساد"
(دېوان: ۲۱۵مخ، کابل)

**د "عظيم فساد" ابجدي ارزښت (۱۱۶۵) دئ او دا د دغو واقعاتو کال وو.**

**ع = ۷۰**
**ظ = ۹۰۰**
**ی = ۱۰**
**م = ۴۰**
**ف = ۸۰**
**س = ۶۰**
**ا = ۱**
**د = ۴**

**ټول = ۱۱۶۵ھ ق**

**له کابل چاپ پرته په نورو ټولو کي تر تاريخي مادې لاندي په عدد (۱۱۶۵) ليکل سوي دي. د قطعې سرليک په کابل چاپ او همېش خليل چاپ کي د ( واقعې تاريخ)، په حنيف خليل چاپ کي (د واقع تاريخ) او په اردو ترجمه کي (پشتونون کی هزيمت کا واقعه) دئ.**

**په (حنيف خليل چاپ دېوان، ۴۱۹مخ) کي ئې د څلرم نيم بيتي (کښې) په (کې) بدل سوی دئ او دا ليکدود ئې په ټول دېوان کي پاللی دئ. دا بدلون پر تاريخي ماده باندي کومه اغېزه نه لري، ځکه نو د بحث وړ نه دئ.**

**په همېش خليل چاپ، د سيدانوارالحق په اردو ترجمه او (حافظ الملک حافظ رحمت خان برېڅی – ۶۴مخ) کي اول بيت يو څه توپير لري او په ترتيب سره داسي ثبت سوي دي:**

پښتانه چه دَ کټهير مــتزلزل دی
که هر څو وی لکه غر قوی بنياد

او:

پُشتانه چه د کټهيرمتزلزل دی
که هر څو وُو لکه غر قوی بنياد

او:

پښتانه د کټـــهېرمــتزلزل دي
که هر څو وو لکه غر قوي بنياد

**په اولو دوو ښتو کي د (کټهير) کلمه دوې څپې ده، ځکه نو د وزن برابرولو په مقصد (چه) پر زيات سوی دئ، خو په نورو ښتونو کي (کټهير) د لومړي او دوهم توري په فتحه (زوَر)، درې څپې دئ او وزن ئې بې له (چه) پوره سوی دئ. دواړه ډوله ښتونه د معماپر قيمت باندي اثر نه لري.**

**(کټه هېر) د روهيل کهنډ پخوانی نوم دئ (وگ: غالب جنګ غازي نواب احمدخان بنګښ: ۱۲۳مخ).**

* * *

**کاظم خان شيدا د سرفرازخان د مړيني په باب وايي:**

تـــا چـــي وکـــړ انتقـــال ســـرفرازخانه!
گرفتـــار پـــه ډېـــر انـــدوه پـــه ډېـــر غمـــوم يـــم

پـــه هـــر بـــزم کـــښي رايـــاد د تـــا محفـــل شـــي
پـــه ژړا کـــړم ســـترگي ســـرې د شـــمع مـــوم يـــم
کـــه نـــه وای ســـرد آهونـــه ژونـــدون گـــرانؤ
هـــسي ســـوی د فـــراق بـــاد ســـموم يـــم
پـــه هـــستۍ بـــه نـــشم خـــلاص لـــه دې ســـختۍ
پـــه نگـــين کـــښي د عقيـــق کينـــدلی نـــوم يـــم

دې تـاريخ و تـه حيـران سـتا د رحلـت وم
خـسته زړه و مـا تـه ووې "زه مغمـوم يـم"
(۲۱۵ مخ، کابل چاپ)

**په کابل چاپ کې ئې (زه) په تاريخي کې شامل کړی نه دئ، ځکه ئې (۱۱۷۶ه) ځني راايستلې ده. څرنګه چې د سرفراز خان د مړيني دوې نوري قطعې هم کاظم خان شيدا ويلي دي او له هغو دواړوڅخه (۱۱۸۸) راوزي نو ماهم (زه) په تاريخي ماده کې شامل کړ.**

| | | |
|---|---|---|
| ز | = | ۷ |
| ه | = | ۵ |
| م | = | ۴۰ |
| غ | = | ۱۰۰۰ |
| م | = | ۴۰ |
| و | = | ۶ |
| م | = | ۴۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| م | = | ۴۰ |

**ټول = ۱۱۸۸ه ق**

**په نورو ټولو چاپونو کې همدا سنه استخراج سوې ده.**

* * *

**د سرفرازخان د مړيني دوهمه قطعه:**

هېر مې حلاوت کړ د دنيا ستا په ماتم کښې
تـا چـې رحلـت وکـړ لـه دنيـا سـرفرازخانه
پاتـه تـش جسد شـوم پـه شـماره د مردګـانو
څرنـګ بـه ژونـدی ومـه تـه لاړې زما جانـه

فال دي د غفران دی چي القا مي په زړه وشوه
"ې ته جنتي شې" خپل تاريخ وا وره له مانه
(۱۰۵۳مخ، د سيدانوار الحق چاپ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| ې | = | ۱۰ |
| ت | = | ۴۰۰ |
| ه | = | ۵ |
| ج | = | ۳ |
| ن | = | ۵۰ |
| ت | = | ۴۰۰ |
| ي | = | ۱۰ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ې | = | ۱۰ |

ټول =۱۱۸۸هـ ق

د دغي تاريخي مادې ثبت په نورو ټولو چاپو کي وران سوی دئ. په کابل چاپ کي"اې ته جنتي شه" دئ چي ابجدي ارزښت ئې (۱۱۷۴) راوزي. په همېش خليل چاپ کي "ته جنتي شې" ثبت دئ چي (۱۱۷۸) ځني استخراجېږي او په حنيف خليل چاپ کي"اې ته جنتي شې" ضبط دئ چي (۱۱۸۹) ورڅخه په لاس راځي. دا ټول عددونه ناسم دي او له هغه عدد (۱۱۸۸) سره چي له کابل چاپ پر ته په نورو ټولو چاپونو کي ئې ور ته کښلی دئ، سمون نه لري. سم ثبت ئې د سيد انوارالحق په چاپ کي راغلی دئ او ما هم هغه راواخيست.

دغه سرفرازخان د علامه رشاد رحمة الله عليه له خولې داسي پېژنو:

"سرفرازخان هغه رسمي لقب دئ چي د لوی احمدشاه بابا (۱۱۶۰ – ۱۱۸۶هـ ق) له خوا د اسدالله خان مشر زوی سعادت مند خان ته ور کړ

**سوی دئ". (د ګلشن روه سریزه ۷۶مخ). دغه اسدالله خان د کاظم خان شیدا ورور او سرفراز خان ئې وراره وو.**

✶✶✶

**د سرفراز خان د وفات دریمه قطعه:**

مـا نظـر پــه غفــور وکــړه
د غفــران دې شــوم راجــي
لـــه دنیـــا ، ســـرفرازخانه
چــې پاکــان ئــې دي هــاجي
ســتا د نقــل دا تــاریخ شــه
"رب دِ وه بخـــښه نـــاجي"
(۱۰۵۳ مخ د سیدانوارالحق چاپ)

**په نوموړي مخ کې (بخښه) د (بخشه) په شکل ثبت دئ چې په قیمت کې توپیر نه لري.**

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| ر | = | ۲۰۰ |
| ب | = | ۲ |
| دِ | = | ۴ |
| وَ | = | ۶ |
| ه | = | ۵ |
| ب | = | ۲ |
| خ | = | ۶۰۰ |
| ښ | = | ۳۰۰ |
| ه | = | ۵ |
| ن | = | ۵۰ |
| ا | = | ۱ |

ج = ۳

ي = ۱۰

ټول = ۱۱۸۸هـ ق

په همېش خليل چاپ کي تاريخي ماده "رب دِ اوبخښه ناجی" ده چي که د (دِ) کسره حساب نه کړو، ابجدي ارزښت ئې (۱۱۸۴) کېږي او که ئې د (ی = ۱۰) په قيمت وشمېرو، (۱۱۹۴) څني راوزي. په حنيف خليل چاپ کي "رب دې وبخښه ناجي" ده چي ابجدي ارزښت ئې (۱۲۰۲) کېږي. دا ټول عددونه سهي نه دي که څه هم تر تاريخي مادې لاندي ئې په ټولو چاپونو کي په عدد (۱۱۸۸) ورته کښلي دي. سم ثبت ئې د سيد انوار الحق چاپ دېوان کي "رب دِ وه بخشه ناجی" دئ، په دې شرط چي د (دِ) کسره په حساب کي و نه شمېرو. معمائيون زياتره کسرې پر لسو شمېري، خو د انصراف مثالونه ئې هم زيات سته. ما د سيد انوارالحق ثبت راوړی دئ. د کابل چاپ دا قطعه نه لري.

* * *

کاظم خان شيدا د خپلي مور مړينه داسي راښيي:

چــې والــدې مــې ارتحــال وکــړ<br>
ځــای ئــې جنـت شـه دنيـا زنـدان وه<br>
تـاريخ (ئـې) دا رنـگ د رحلت ووې<br>
خرد و مـا تـه "مياشت د شعبان وه"

(آواره شيدا: ۴۷مخ)

حل:

م = ۴۰

ی = ۱۰

ا = ۱

ش = ۳۰۰

| | | |
|---|---|---|
| ت | = | ۴۰۰ |
| د | = | ۴ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ع | = | ۷۰ |
| ب | = | ۲ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| و | = | ۶ |
| هـ | = | ۵ |

ټول = ۱۱۸۹هـ ق

دغي تاريخي قطعې د کاتب د بې پروايۍ له اسيته ډېر غټ ځېړنيز بحث رامنځ ته کړی وو. ارواښاد دوست محمدخان کامل مومند چې کله د تاريخ مرصع متن چاپ ته آماده کاوه او حواشي ئې پر کښلې، دې نتيجې ته رسېدلی وو، چې د کاظم خان شيدا پلار افضل خان خټک ګڼل نورو اسنادو ته اړتيا لري او دليل ئې دا وو چې په تاريخ مرصع کي د افضل خان خټک د زامنو په لړ کي د کاظم خان نوم نسته. په دې ترڅ کي ئې د دغي تاريخي قطعې په باب هم ، چې تر دغه وخته د کاظم خان شيدا د (والد) د مړيني قطعه ګڼل کېدله، د شک ځرګندونه وکړه. دا بحث زما د دا اوسني کتاب موضوع نه ده، ځکه نو تفصيلي بيان نه باندي کوم. د ارواښاد کامل صاحب د دغه شک په جواب کي او په مجموع کي د تاريخ مرصع د چاپ او تعليقاتو په باب ارواښاد پوهاند رشتين صاحب څو کاله وروسته د کابل پوهنتون د ورمې مجلې د ۱۳۵۶ش کال په (۲مه) ګڼه کي يوه انتقادي مقاله خپره کړه او د هغې په ترڅ کي ئې د دغي قطعې په باب وکښل چې:

"... د دغې رباعي اوله مسره شعري کسر لري او يوسېلاب کمه ده، بايد

داسي ولوستل شي: (چې والدې مې ارتحال وکړ)[۱]. سید انوارالحق هم دغي کمبوتیۍ ته متوجه سوی دئ او د (خپل) کلمې په زیاتولو سره ئې د مصرع وزن سم کړی دئ خو ښاغلی حنیف خلیل لیکي د (خپل) کلمه په خطي دېوان کي نسته[۲]. کامل مرحوم د دغي انتقادي مقالې جواب وکیښ، پر خپل پخواني موقف ئې ټینګار وکړ خو په ځنګ کي دا خبره هم وکړه چي د تاریخ مرصع په سریزه کي ئې له دې خبري ځخه "سکوټ انکار نه دی کړی چې کاظم خان شیدا د تاریخ مرصع د مؤلف افضل خان زوی دئ". دا خبره ئې پخپل یوه بل اثر چي (۱۶۳۰ع) نومېږي، تکرار کړه[۳]. ښاغلي حبیب الله رفیع د دغي تاریخي قطعې د سپینېدو په نیامت د شیدا د دېوان هغه نسخه وکتله چي د ده په ژوند خطاطي سوې او د اسلامیه کالج په کتابتون کي خوندي ده. د خپل تحقیق جریان ئې په اواره شیدا- ۴۶مخ کي وکیښ او د (والد) پر ځای ئې (والدې) کلمه تائید کړه چي ما هم پورته رانقل کړې ده.

په بیبنواچاپ، د همیش خلیل چاپ او د سیدانوارالحق دېوانو کي د دغي قطعې عنوان (د پلار مړینه) دئ خو په حنیف خلیل چاپ کي د خطي نسخې په پیروۍ (تاریخ) لیکل سوی دئ. په درو سرو چاپونو کي په عدد (۱۱۸۳) ورته لیکل سوي دي خو په حنیف خلیل چاپ کي دغه سنه (۱۱۸۹ھ) لیکل سوې ده چي همدا ئې سمه ښه ده. دی لیکي چي ښاغلي همېش خلیل پخپل بل کتاب (ساهو ادب) کې دغه سنه سمه کړې ده[۴].

---

[۱] زما لاس اوس د وړمې مجلې نومړي ګڼې ته نه رسېږي او اقتباس مي له "آواره شیدا" نومي رسالې ۱۴مخ ځخه اخیستی دئ (م. ھ).

[۲] وګ: د حنیف خلیل چاپ دېوان: ۴۸۱مخ، ۱۸۳یم لمنلیک.

[۳] وګ: نومړی اثر: ۲۲۸ مخ.

[۴] وګ: هماغه مخ، هماغه لمنلیک.

✶✶✶

**د والدې د مړينې بله قطعه:**

غــم بــه تــر عمــره د والــدې کــړم
خنــدا مــې پرېــښوه ژړا کــوم زه
ســال د رحلـت ئـې لـه مانـه واوره:
"بهـشت ې ځـای شـه دعـا کـوم زه"
(آواره شيدا: ۴۷ مخ)

**حل:**

ب = ۲
ه = ۵
ش = ۳۰۰
ت = ۴۰۰
ې = ۱۰
ځ = ۳
ا = ۱
ی = ۱۰
ش = ۳۰۰
ه = ۵
د = ۴
ع = ۷۰
ا = ۱
ک = ۲۰
و = ۶
م = ۴۰
ز = ۷

ه = ۵

ټول = ۱۱۸۹هـ ق

د دې قطعې عنوان په همېش خلیل چاپ او حنیف خلیل چاپ کې (د مور مړینه)، د سیدانوارالحق چاپ کې (اپنی والده کی تاریخ وفات) دئ. په درو سرو چاپونو کې په عدد (۱۱۸۹هـ) ورته لیکل سوی دئ. د بېنوا چاپ عنوان او عددي ښوونه نه لري.

***

د حافظ رحمت خان د شهادت تاریخي ماده ئې داسي ویلې ده:

په میدان چي حافظ جي پرېووت شهید شه
کشنده یې په رحلت کښې شه عجول
استفسار که د تاریخ کاندي څوک، وایه:
چي "یو کال و د قاتلُ د مقتول"

(دېوان: ۲۱۶مخ، د بېنوا چاپ)

د بېنوا چاپ په ثبت کي ما یو څه لاس وواهه چي دلیل به ئې وروسته ولولی. په هغه چاپ کې تاریخي ماده (یو کال و د قاتل و د مقتول) ثبت سوې ده. په همېش خلیل چاپ کې (چه یؤ کال و قاتل و د مقتول)، په حنیف خلیل چاپ کې (چې یو کال د قاتل و د مقتول)، په سید انوارالحق چاپ (چه یو کال و، قاتل و د مقتول) ده. بېنوا چاپ په عدد څه نه دي ورته کښلي خو په نورو چاپو کې ئې په عدد (۱۱۹۴) ورته لیکلي دي. دغه عدد یوازې د بېنوا چاپ له ثبت څخه لاس ته راتلای سي. په سید انوارالحق چاپ کې ئې دا خبره هم د نوټ په شکل پر زیاته کړې ده چي: (یهی ۱۱۹۴هـ خود کاظم خان شیدا کا سال رحلت بهی بتایا گیاهې – اگر اس تاریخی مصرعې سې صرف چار الفاظ" یو، کال، قاتل، مقتول" لیتی هین تو ان سې ۱۱۷۴هـ نکلتاهې). د کاظم خان شیدا د وفات کال رشتیا هم ۱۱۹۴هـ ق دئ او د ښاغلي حنیف خلیل خبره: "...د شک او تردد نه پاک

دی"[۱]. د حافظ رحمت خان د شهادت کال په پښتو، اردو، عربي او فارسي ژبو کي ویل سوی دئ او له ټولو څخه بالاتفاق (۱۱۸۸هـ ق) راوزي[۲]. خو د حیرانتیا ځای دا دئ چي د کاظم خان شیدا دغي قطعې ته له کابل چاپ پر ته په ټولوچاپ سوو دېوانو کي په عدد (۱۱۹۴هـ) لیکل سوي دي.

اوس پوښتنه دا ده، چي د کاظم خان شیدا له دغي قطعې څخه د حافظ رحمت خان د شهادت کال باید څرنګه استخراج سي؟ دغي پوښتني ته علامه رشاد پورتنۍ تاریخي قطعې ته په لمنلیک کي جواب ویلی دئ او هغه دا چي: "د قاتل او مقتول تر منځ د عطف کلمه نسته، د قاتل د لام په پېښ اکتفاسوې ده". چي د دې استدلال له مخي باید له تاریخي مادې د عطف (و) وایستل سي او "یو کال و د قاتلُ د مقتول". په دې ډول به د حافظ رحمت خان د شهادت کال (۱۱۸۸هـ ق) ترې راووزي.

حل:

ی = ۱۰

و = ۶

ک = ۲۰

ا = ۱

ل = ۳۰

و = ۶

د = ۴

ق = ۱۰۰

ا = ۱

---

[۱] وګورئ: د کاظم خان شیدا دېوان، تدوین د حنیف خلیل، ۱مخ، چاپ ۲۰۰۵ع.

[۲] د تفصیل له پاره وګورئ: د علامه رشاد "حافظ الملک حافظ رحمت خان بړېڅی ....: ۷۶، ۷۷، ۷۸ مخونه.

**ت = ۴۰۰**

**ل = ۳۰**

**د = ۴**

**م = ۴۰**

**ق = ۱۰۰**

**ت = ۴۰۰**

**و = ۶**

**ل = ۳۰**

**ټول = ۱۱۸۸هـ ق**

**د حنیف خلیل چاپ دېوان کي دغه تاریخي ماده (یو کال د قاتل و د مقتول) ثبت سوې ده او له دې ثبت څخه د حافظ رحمت خان د شهادت کال (۱۱۸۸هـ ق) راوزي، خو په عدد سره د (۱۱۹۴هـ ق) لیکل ئې د حیرانتیا وړ دئ.**

***

**د کاظم خان شیدا په دېوان کي بله پښتو تاریخي قطعه داسي ده:**

چې فتح او الله نور له دنیا ولاړل
په غمونو کښې ئې فرق تر میاشتې کم
په هر چا وو رحلت سخت د دواړو روڼو
په فراق کښې ئې نالان وو لوی او کم
تأمل ئې په بیان د تاریخ وشه
راته ووې زړه "آها د قلوب غم"

(۴۲۱ مخ د حنیف خلیل چاپ)[1]

[1] په پورتنی ټوټه کي د دواړو (کښې) پر ځای (کې) لیکل سوی دئ.

حل:

آ = ۱

هـ = ۵

ا = ۱

د = ۴

ق = ۱۰۰

ل = ۳۰

و = ۶

ب = ۲

غ = ۱۰۰۰

م = ۴۰

ټول = ۱۱۸۹هـ ق

ارواښاد دوست محمدخان کامل د تاریخ مرصع په مقدمه (۳۹ مخ، د ۲۰۰۶ع چاپ) کي په دغه تاریخي قطعه کي راغلي کسان (فتح او الله نور) د کاظم خان شیدا وروڼه بللي دي، خو زما فاضل استاد علامه رشاد مرحوم د ګلشن روه په سریزه (۷۳مخ) کي دغه نظر رد کړی دئ او کښلي ئې دي: "خو ما ته په فتح خان او الله نور پوري د مربوطي قطعې سیاق داسي نه ښکاري چي دوی دي د کاظم خان شیدا وروڼه وي، بلکه زه ګمان کوم دوه پښتانه وروڼه په یوه میاشت کي مړه دي او دغه پېښه د روهیلکهنډ د ډېرو پښتنو د خواشینۍ سبب ګرزیدلې ده چي په هغو کي کاظم خان شیدا غوندي حساس شاعر دی، ...". د علامه مرحوم دغه نظر

---

په آواره شیدا (۴۹مخ) کي اوله مصرع (چي فتح الله او الله نور له دنیا ولاړل) ثبت سوې ده. ارواښاد دوست محمد خان کامل صاحب هم د تاریخ مرصع په مقدمه (۳۹مخ، چاپ ۲۰۰۶ع) کي د دې دوو وروڼو نومونه (فتح الله او الله نور) لیکلي دي.

ښاغلي حبیب الله رفیع په آواره شیدا (۴۸مخ) کي هم پخپلو جملاتو کي منعکس کړی دئ.

د تاریخ مرصع د همدې چاپ (۲۰۰۶ع) د سریزي په همدې (۳۹) مخ کي د کاظم خان شیدا د دېوان په بینوا چاپ کي د پورتنۍ قطعې په اړه لیکل سوي دي:

(د بینوا نسخه کښې "هي هي د قلوب غم" او اعداد ۱۱۹۱ د دیو الفاظو اعداد ۱۲۱۲ جوړیږي).

د بېنوا چاپ په نسخه کي تاریخي ماده "هي هي دقلوب غم" نه ده، بلکي "آها د قلوب غم" ده خو په عدد ئې رشتیا هم (۱۱۹۱ه) ورته کښلي دي.

***

د کاظم خان شیدا په دېوان کي د میر معصوم ثاني رحمة الله علیه د وفات یوه تاریخي قطعه او د نواب علي محمدخان د وفات درې قطعې سته، خو هغه ټولي په فارسي ژبه دي او زما د دې حاضر کتاب موضوع د پښتو شعر تعمیې دي، له څو استثناوو پرته مي فارسي تعمیې نه دي اخیستي.

***

# دریم څپرکی

## تعمیې د منځنۍ دورې په ادب کې

## د اخوندګدا په کلام کي

اخوند ګدا د نافع المسلمین مؤلف دئ. ده پخپل دغه کتاب کي د نواب احمدخان بنګښ د ورور نواب قائم خان قائم جنګ د وژلو تاریخي ماده داسي ویلې ده:

د تاریخ حساب ئې "بلغ العلا" دی
له دنیا په دا تاریخ بلند مکان ولاړ

د دغي تاریخي مادې حل او د نواب قائم خان د وژلو تفصیلي بیان علامه رشاد مرحوم پخپل کتاب (غالب جنګ نواب احمد خان بنګښ ...) په ۷۱ – ۸۳ مخونوکي راوړی دئ . هورې ئې کښلي دي: "پښتانه شاعر اخوند ګدا په نافع المسلین کي د دغه ځواني مرګ نواب د مرګ تاریخ "بلغ العلا" (۱۱۶۳ – ۱ = ۱۱۶۲هـ ق) راوړی دی چي د "بلندمکان" په تعمیه سره د تخرجې په ډول د یوه عدد ځیني وزي او ۱۱۶۲ پاتېږي".

د تاریخي مادې حل:

په پښتانه شعراء لومړي ټوک کي د دغه بیت د تاریخي مادې لیکدود د (بلغ العلی) په شکل ثبت سوی دئ او له هغې څخه ئې (۱۱۷۳هـ ق) کال راایستلی دئ چي په دغه لیکدود سره سم استخراج دئ. خو علامه رشاد رحمة الله علیه هغه جګړه، چي نواب قائم خان خپل سر پکښې وخوړ، د

نواب علي محمدخان له وفات سره متصله بللې ده. نواب علي محمدخان د ۱۱۶۲هـ ق کال د کوچني اختر په دریمه د روهیلکهنډ په مرکز (انوله) کي مړ سو (وګ: غالب جنګ ...: ۷۱مخ). له همدې اسیته ئې د اخوند ګدا په پورتني بیت کي تاریخي ماده د "بلغ العلا" په لیکدود کښلې ده او له هغې څخه ئې لکه چي پورته مو ولوستله، (۱۱۶۲هـ ق) کال راایستلی دئ.

په پورتنۍ محاسبه کي د (بلغ العلا) ابجدي ارزښت (۱۱۶۳) بلل سوی دئ. ګویا د تاریخي مادې د منځ الف په شمېر کي نه دئ راغلی ځکه که دغه الف په محاسبه کي راولو، نو د دغي مادې ارزښت (۱۱۶۴) کېږي:

ب = ۲

ل = ۳۰

غ = ۱۰۰۰

ا = ۱

ل = ۳۰

ع = ۷۰

ل = ۳۰

ا = ۱

ټول = ۱۱۶۴

د (۱۱۶۳) د منلو په صورت کي باید تاریخي ماده (بلغ لعلا) ولیکل سي. فهوالمراد.

* * *

## د نواب محبت خان په کلام کي

نواب محبت خان د خپل پلار حافظ رحمت خان برېښ د شهادت بله تاریخي ماده په "خانا دلِ راشا" کي موندلې ده.

آن حافظ شرع نبوی بعد شهادت
چون رفت سوی خلد برین بهر تماشا
رضوان پی تعظیم زجا جست و همی گفت
در معنی تاریخ که "خانا دلِ راشا"
(حافظ الملک ...: ۷۷مخ)

**"خانا دلِ راشا" = ۱۱۸۸هـ ق[۱].**

**محبت خان د پلار د شهادت تاریخ په عربي ژبه هم ویلی دئ چي زما فاضل استاد علامه رشاد رحمة الله علیه هغه په پښتو نظم ترجمه کړی دئ. له موضوع سره د ارتباط له مخي به ئې د (حافظ الملک حافظ رحمت خان برېڅی او د هغه کورنی) له کتابه – ۱۳۲ – ۱۳۳مخونه) عربي او پښتو نظمونه دواړه رانقل کړم. عربي:**

اذا مات شیخ النصیر الکبیر
سئلنا من الله تاریخه
علی سنت المصطفی عامل
فقد قال (فی جنتی داخل)

**پښتو:**

چي په دنیا کي د نبي پر شرعه ټینګ و حافظ
ګمان مي کړ په آخرت کي هم واصل دی حافظ
دغه تاریخ ذهن ته راغی، د الهام په توګه
چي یو پر زیات کړې "په جنت کي زما داخل دی" حافظ

---

[۱] دغه تاریخي ماده په یوه اردو بیت کي هم داسي راغلې ده:
حافظ کا گرا گھوڑي سې جس وقت که لاشا
هاتف نې دې آواز که (خانا دلِ راشا)

د (فی جنتی داخل) پښتو ترجمې په باب علامه مرحوم داسي توضیح ورکړې ده:

"ما (رشاد) دغه تاریخي ماده له عربي څخه په پښتو داسي وژباړله: (په جنت کي زما داخل دی)، خو دغه جمله تر (۱۱۸۸) یو کال لږ سوه، اړ وتلم چي د تکملې په عملیه یو عدد پر زیات کړم ...".

نواب محبت خان بړېڅ پښتو - فارسي قاموس هم کښلی دئ چي (ریاض المحبت) نومېږي. د دغه قاموس د تصنیف کولو تاریخي ماده ئې په فارسي داسي ویلې ده:

این تحفه نسخه نو، تصنیف شد چو از من
آمد نِدا زهر سو، صد آفرین و رحمت
سال تمام آنرا، هر گه زغیب جستم
تاریخ گفت هاتف، (نو نسخه محبت)

د (نو نسخه محبت) ابجدي ارزښت (۱۲۲۱) دئ او دا په قمري حساب د ریاض المحبت د تالیف کال دئ.

***

# د نواب الله یار خان په کلام کي

نواب الله یارخان هم د حافظ رحمت خان بړېڅي زوی دئ. ده د عجائب اللغات په نامه یو قاموس کښلی دئ چي هندي لغتونه ئې په پښتو، پارسي او عربي معنا کړي دي. د دغه قاموس د بشپړېدلو کال ئې په پښتو نظم داسي ښوولی دئ:

ما چي خیال د تاریخ وکه، له هجرته مي حساب شو
هم ئې دا جمله تاریخ شو، (چِ اتمام ې د کتاب شو)

له دې تاریخي مادې څخه (۱۲۲۸هـ ق) کال راوزي، په دې شرط چي

جمله په همدې ليکدود وليکل سي، نه په اوسني مروج رسم الخط.

د حافظ رحمت خان بړېڅی په فرهنګپاله کورنۍ کي خورا زيات د نامه څښتنان پوهان تېر سوي دي خو د هغوی پښتو آثار محدود و معدود دي. په اردو، عربي، فارسي ژبو ئې ډېري تاريخي مادې د شعر په ژبه ويلي دي چي زما د حاضر کتاب په چوکاټ کي نه سي راتلای. لوستونکي دې زما د فاضل استاد علامه رشاد په درانه اثر (حافظ الملک حافظ رحمت خان بړېڅی او د هغه کورنۍ) کي ولولي.

✶✶✶

## د پير معظم شاه په کلام کي

پير معظم شاه د تواريخ حافظ رحمت خاني مؤلف دئ. دی د خپل دغه کتاب په پای کي د هغه د ليکلو تاريخ داسي بيانوي:

دا کتــاب مــې منتخــب کــړ
پــه ښــه شــان مــې مهــذب کــړ
هجــر ســن مــې هــم حــساب کــړ
زړه مې خلاص له پيچ و تــاب کړ
هجــري ســن زر ســل اتيــا دی
يــو کــال بــل هــم پــرې بــالا دی
غـــــره هـــــم د محـــــرم ده
دا رنـــګ يـــاد د معظـــم ده

(۱۸۸مخ، چاپ ۱۹۸۷ع پېښور)

دا کتاب ئې د ۱۱۸۱هـ ق کال د محرم مياشتي پر اوله پای ته رسولی دئ.

د (حافظ الملک حافظ رحمت خان بړېڅي او د هغه کورنۍ) په کتاب

(۹۴ مخ) کي دا بيتونه په يو څه بدلون سره ثبت سوي دي او د کتاب د تاليف کال د چاپي غلطۍ له اسيته (۱۰۸۱هـ ق) بلل سوی دئ، چي سهي نه دئ.

دا کتـــاب يـــې منتخـــب کـــړ
پـــه ښـــه شـــان مـــي مهـــذب کـــړ
مختـــصر مـــي دا کتـــاب کـــه
ســـن د هجـــر مـــي حـــساب کـــه
هجـــري ســـن زر و اتيـــا دی
يـــو کـــال بـــل هـــم پـــرې بـــالا دی
غـــره هـــم د محـــرم ده
دا رنـــگ يـــاد د معظـــم ده

تواريخ رحمت خاني پير معظم شاه د حافظ رحمت خان (۱۱۲۰ – ۱۱۸۸هـ ق) په لارښوونه کښلی دئ ځکه نو د تاليف کال ئې بايد ۱۱۸۱هـ ق وي. که ۱۰۸۱ ومنو، نو په دغه کال خو حافظ رحمت خان زېږېدلی لا نه دئ نو د کتاب لارښوونه به ئې پير معظم ته څرنگه کوله؟

***

# د دادين شاعر په کلام کي

دادين د ځمکنو د مياعمر صاحب رحمة الله عليه مريد وو. ده د خپل پير د وفات سانده ويلې ده او په هغې کي ئې د وفات تاريخي ماده داسي بيان کړې ده:

ســـن (غـــصق) د پنجـــشنبې پـــه ورځ اې جانـــه
د رجـــب پـــه غـــرې لاړ شـــه لـــه جهانـــه

(د ځمکنو مياعمر رحمة الله عليه: ۳۰مخ)

د (غصق) ابجدي ارزښت (۱۱۹۰) دئ. د دادین له بیانه داسي ښکاري چي میاعمر صاحب د همدې کال د رجب په اوله د پنجشنبې په ورځ وفات سوی دئ. د تقویم تاریخي په حواله د ۱۱۹۰ هـ ق کال د رجب لومړۍ ورځ جمعه وه (د ۱۷۷۶ع داګست ۱۶مه).

***

## د څمکنو د میاعمر صاحب په کلام کي

د څمکنو میا صاحب د خپل منظوم اثر شمایلنامې د ویلو کال په نظم کي داسي ویلی دئ:

پــه مقــام د پیــښور پــه څمکنــو کــي
شــمایل شــه د طالــب د زړګــي نهــال
زر و ســل او دري شــپیته د هجــرت ســن و
چــي را وخــوت دا مــذکور لکــه هــلال

(د څمکنو میاعمر: ۵۳مخ)

د شمایلنامې د لیکلو کال (۱۱۶۳هـ ق) دئ.

***

## د علیخان په کلام کي

علیخان په یوه شعر کي خپل نوم د معماپه صنعت کي راوړی دئ:

معــــما مِ ده او وه ســــوه د اسم
لا هم کم دی که دوه واره ورله لام لاړ

(دېوان ۵۳ مخ د ۱۹۵۱ع کال چاپ)

د ۱۹۳۹ ع = ۱۳۵۸هـ ق چاپ دېوان ۳۶مخ کي دوهمه مصرع (لا یو کم دی که دوه څله ورله لام لاړ) ده. دغه ثبت کټ مټ په هغه چاپ کي

هم اخیستل سوی دئ چي د ښاغلي حبیب الله رفیع په مقدمه د پښتو ادبی مرکز سرای نورنګ (بنون) له خواپه ۱۹۹۱ع کال خپور سوی دئ. دا ثبت ځکه ناسم دئ چي مقطع د غیر منقوط غزلي ده او دلته دوې کلمې (یو، ځله) ټکي لري. د لومړي ثبت حل داسي ښوول سوی دئ:

حل:

له (۷۰۰) سره چي د "ورله" په قرینه دوه واره (ل = ۳۰) جمع سي، (۷۶۰) لاس ته راځي. خو شاعر وايي چي دا عدد د ده د نامه له پاره "لا هم کم دئ". دا چي څونه کم دئ، باید د ده د نامه (علیخان) ابجدي ارزښت معلوم سي. دا ابجدي ارزښت (۷۶۱) دئ. په دې ډول:

ع = ۷۰
ل = ۳۰
ی = ۱۰
خ = ۶۰۰
ا = ۱
ن = ۵۰
ټول = ۷۶۱

(۷۶۰) تر پورتني عدد (یو) کم دئ او شاعر د غیر منقوط صنعت په حکم ټکي لرونکی توری (ي) نه سی لیکلای ځکه ئې (لاهم) لیکلی دئ او مراد ئې (۱) دئ. دا هغه توجیه ده چي د دېوان علیخان شارح او مقدمه لیکونکي سیدتقویم الحق کاکاخېل د دغه دېوان د (۵۳مخ) په اوله حاشیه کي کښلې ده.

د دغي غیر منقوطي غزلي مطلع داسي ده:

دا مِ دم که مِ هــمدم که دلارام لاړ
هم مِ روح وه لاړ له ما هم مِ آرام لاړ

د چاپي دېوانو د ثبت له مخې له (لا) څخه د (يو) مفهوم اخيستلو له پاره هيڅ راز منطقي قرينه نسته. (لا) که عربي وګڼو، د نفي معنا لري او که ئې پښتو وبولو د (هنوز) معنا لري.

خوشحال خان وايي:

لا ترا وسه ئې مـــاغزه پر قرارنه دي
چا چي ماسره وهلی سر پر سنګ دئ

د (لا) توري څخه په عربي او پښتو دواړو معناوو کي د (۱) مفهوم اخيستلو ګنجايش نسته. په نتيجه کي ويلای سو چي د (لا) پر ځای په اصل شعر کي کومه بله کلمه وه او د کاتب د ناپوهۍ و بې پروايۍ له اسيته ئې پر ځای (لا) راوړل سوې او پسې عامه سوې ده. د دغه ګومان د سموالي له پاره به زه اول د اورنګزېب ارشاد د (بديع او د پښتو شعر) کتاب له (۳۰مخ) څخه دغه معما رانقل کړم. هورې ئې د (لا) پر ځای (بيا) راوړی دئ:

معـــــما مې ده اووه ســـــوه د اسم
بيا هم کم دی که دوه ځله ورله "لام" لاړ

ښاغلي اورنګزېب ارشاد خپل مأخذ نه دئ ښوولی خو په دوهم نيم بيتي کي (دی) فعل ته توجه په کار ده. عليخان دا فعل د (معما) له پاره راوړی دئ. (معما) کلمه د جنس له مخې مؤنثه کلمه ده او اړوند فعل ئې بايد هم مؤنث وي او (بيا هم کمه ده) بايد ليکل سوې وای. دغه اعتراض د (لا) په کارولو کي هم وارد دئ. د دغي ماشوړې د حل له پاره زه پخپل کتابتون کي د عليخان د دېوان د خطي نسخې کاپي په مثال کي راوړلای سم. هورې د دغي غزلي مقطع داسي ده:

معـــمام ده اووســـوه داســـم
دا هم کم وو دوه واړه وله لام لاړ

**د (لا هم)، (بیا هم)، (دا هم) بېلابېل ثبتونه دا ګومان پیاوړی کوي چې د معماپه ثبت کې لاسونه وهل سوي او اصل ثبت بل راز دئ.**

**زما یقین دئ چې په دغه معما کې دوهمه مصرع ("آ" هم کم دی که دوه واره ورله لام لاړ) ده. د (آ) ابجدي ارزښت (یو = ۱) دئ او مطلوبه سنه هم د (۱) په زیاتولو سره په لاس راځي. زما د دغي یقیني توجیه له مخي به نو د معمااصلي بڼه داسي وي:**

معـــما می ده "اووه ســــــوه" د اسم

"آ" هم کم دی که دوه واره ورله لام لاړ

**له "آ" سره (دی) فعل هم کومه ستونزه نه لري او په ګرامري لحاظ ورسره وایي.**

* * *

**علیخان په یوه بل بیت کې وایي:**

سن د هجر غـــــر وه سر د کاڼي ترې کمـــتر وه

ورځه دیارلسم د ذوالحجې وه په تحریر کښې

**(۵۵مخ)**

**د دې مادې سمدستي حل د چا ذهن ته داسي ورځي چې تاریخي ماده "غر" ده چې ابجدي ارزښت ئې (۱۲۰۰) کېږي. له دې عدد څخه چې د (کاڼي) سر یعني (ک = ۲۰) کم سي، (۱۱۸۰) پاتېږي. د ده مطلوبه واقعه د ۱۱۸۰هـ ق کال د ذوالحجې په دیارلسمه پېښه سوې وه. ډاکټر سید تقویم الحق کاکاخېل د (دېوان علیخان، چاپ ۱۹۵۱ع د سریزي په "ک" مخ او د متن ۵۵مخ) کي هم همداسي حل کړې ده. د پښتو ژبي نقاد څېړونکي ارواښاد قلندر مومند (۱۹۳۰ – ۲۰۰۳ع) د محمدي صاحبزاده د دېوان د سریزي په "و" مخ کي دا تاریخي ماده بل راز حلوي او هغه دا چې مطلوبه سنه تر (غر = ۱۲۰۰) د کاڼي د سر (ک = ۲۰) په اندازه کمه وه او په دې ډول باید(۲۰) له (۱۲۰۰) سره جمع سي چې (۱۲۲۰) لاس ته راسي. دا کال**

**د محمدي صاحبزاده د وفات کال دئ چي عليخان ئې ګويا ورځ هم راښوولې ده چي د ذوالحجې ديارلسمه ده. محمدي صاحبزاده ته د عليخان ارادت (مريدي يا مخلصي) اروانښاد قلندر د عليخان په دې بيت سره ثابتول غواړي:**

زه پيرو د محمدي يم هم تابع د صاف جامي يم
په دا دوارو پسې ما ده ځــــکه کړې اقــتدا دا

**د عليخان دا بيت د ده د ديوان په (۱۳۵۸هـ ق = ۱۹۳۹ع) چاپ کي داسي دئ:**

زه پس رو محمدی يم، هم تابع د صاف جامی يم
په دا دوارپسې مـــا ده، ځکه کـــړې اقــتدا دا
(۶مخ)

**او د (۱۹۵۱ع) په چاپ کي:**

زه پيرو محمدی يم، هم تابع د صاف جامی يم
په دا دوارو پسې ما ده، ځــکه کــړې اقتدا دا
(۸مخ)

**دا بيت په همدې شکل د ديوان په (۲۰۰۵ع – چاپ دانش) کي هم ثبت دئ.**

**زما د کتابخانې په خطي نسخو کي د عليخان ديوان د يوې خطي نسخې کاپي سته چي اصلي نسخه د ښاغلي صحاف په کلکسيون کي خوندي ده. په دغه خطي نسخه کي پورتنی بيت داسي راغلی دئ:**

زه پس رو د محمد يم، هم تابع د لـوی احـديم
په دوی دوارو پسې ځکه، ما ده کړې اقتدا دا

**د اروانښاد قلندر مومند له خوا د دغه بيت په ثبت کي تر "محمدي" دمخه (د) ور زيات سوی او د بيت وزن ئې يوه هجازيات کړی دئ. که بيت پخپل پخواني ثبت کي ولوستل سي د هجا د زياتوالي عيب ئې له**

منځه ځي او په هغه صورت کي له "زه پیرو محمدي یم" څخه مراد د آنحضرت ﷺ پیروي ډېره غالبه ایسي نظر د "محمدي صاحبزاده" تر پیروۍ. زما د کتابتون د خطي نسخې ثبت خو بېخي په څرګنده توګه "د محمد" پیروي یادوي، نه د محمدي صاحبزاده. دا هغه خبري دي چي یو نقاد څېړونکی هرومرو ورسره مخامخ کېږي، خو د دې معنا به دا نه وي چي د قلندر مومند مرحوم استنباط دي هرومرو غلط وي.

د قلندر مرحوم له دغه استخراج سره ارواښاد پوهاند رشتین موافقه نه لرله او د "غر" له ابجدي ارزښت څخه ئې د "ک = ۲۰" تفریق کول صحیح ګڼل (د علیخان دېوان چاپ ۲۰۰۵ع د سریزي د "پینځه" مخ په حواله).

د پښتو ژبي معاصر نقاد لیکوال پروفېسر راج ولي شاه خټک هم په دې برخه کي د ارواښاد قلندر مومند له دې استنباط سره موافق نه ښکاري او لیکي چي: د "سن د هجر ..." بیت اړونده "... ټول غزل ډېر شوخ او رنګین دئ د مرثیې هیڅ رنګ نه لري او نه په کې څه غم و اندوه ښکاره کړه شوی دی؛ نو په داسې حال کې، چې علي خان د محمدي صاحبزاده پیرو یا مرید ګڼلی کېږي؛ نو په دا قسم رنګین غزل کې د هغوی د وفات تاریخ څومره امکان لري؛ ځکه، چې د غزل په وړاندې او وروسته شعرونو (مراد بیتونه دي. هوتک) کې د واقعي نوعیت په هکله هیڅ اشاره نشته".
(وګ: د علیخان دېوان، چاپ ۲۰۰۵ع، د سریزي پنځه – شپږ مخونه).

* * *

د علیخان په کلام کي پر یوه بل بیت باندي هم د احتیاط په قید سره د تعمیې خیال کېدلای سي. بیت داسي دئ:

مرسته مې واجب شوه د جهان په نرو ښځو
هسې شان ځېلی د یوه کاف استیلا یم
(۹۱مخ)

شارح ورته کښلي دي چي له (کاف) څخه مراد (کفر) دئ او که د کوم ځای پر مسلمانانو د کفر استیلا غلبه وکړي د ټول جهان پر نروښځو باندي له دغه مظلوم قوم سره مرسته کول واجب ده.

***

## د یونس په کلام کي

یونس په پښتو ژبو شاعرانو کي هغه څوک دئ چي تر بل هر چا ئې په شعر کي د تعمیې صنعت ته ډېره پاملرنه کړې ده. د ده دېوان په کابل کي د څېړندوی خدمتګار په سریزه او تصحیح چاپ سوی دئ. وایي هغه خطي نسخه چي دغه دېوان ورڅخه ترتیب سوی دئ، د څمکنو د میا عمر رحمة الله علیه د زوی محمدي صاحبزاده تر نظر تېره سوې ده او ښه ډېري معماوي ئې د هغه له خوا حل سوي دي. څه چي پاته دي، زیاتره ئې د چاپي دېوان مصحح څېړندوی خدمتګار حل کړي دي. په ناحلو کي ئې یو دوې د ارواښاد علامه رشاد رحمة الله علیه په قلم حل سوي دي او پر پاته باندي به زه خپل فکر وازمویم، وګورو، چي څه تر وزي.

د معماوو په رانقلولو کي مي د چاپي دېوان لیکدود کټ مټ پاللی دئ.

یونس وایي:

ثلث لام چه لیرې که په قول کښېږ یونسه
ســـتا نامـــه به وکاږي هـــله له مُعَمّا

(دېوان: ۱۰مخ)

دا معماد یونس په نامه ده. شاعر د غزلي په مقطع کي د خپل نامه پر ځای دغه معما راوړې ده. حل ئې داسي دئ:

د "قول" ابجدي ارزښت (ق = ۱۰۰ + و = ۶ + ل = ۳۰ = ۱۳۶) دئ. د لام ابجدي ارزښت (۳۰) دئ، ثلث (دریمه برخه) ئې (۱۰) کېږي. لس چي

د (قول) له ابجدي ارزښت (۱۳۶) څخه د "ليرې" کلمې په قرينه منفي سي، (۱۲۶) پاتېږي. د (يونس) ابجدي ارزښت هم (۱۲۶) دئ.

| | | |
|---|---|---|
| ی | = | ۱۰ |
| و | = | ۶ |
| ن | = | ۵۰ |
| س | = | ۶۰ |
| ټول | = | ۱۲۶ |

دا معما په چاپي دېوان کي خدمتګار صاحب په همدې شکل حل کړې ده.

***

د يونس په نامه بله معما چي د غزلي په مقطع کي راغلې ده:

چي سل شپږ پنځوس و دوه اويا دوه نام که
هغه پوه ګـــڼه يونسه په ابجـــد ســـــتا
(۱۲مخ)

دا معما په چاپي دېوان کي نه سمه ليکل سوې ده او نه سمه حل سوې. هورې ئې کښلي دي: "که (۱۵۶) د (۷۲) سره يو ځای کړو نو (۲۲۸) ترې راووځي، که د (ابجد) د کلمې توری (ا، ب، ج، د) د ابجد په حساب وګڼو نو (۱۰) ترې جوړېږي او چه دا (۱۰) په پورتني عدد واچوو (۲۳۸) کيږي. د يونس د کلمې توري (ی، و، ن، س) د ابجد په حساب (۱۲۶) کيږي، چه دوه ځله يې وګڼو نو هماغه (۲۳۸) ترې جوړيږي. يعني:

۱۵۶ + ۷۲ + ۱۰ = ۲۳۸ تقسيم پر ۲ = يونس"

د دې معما د حل اوله خښته کږه ايښوول سوې ده او هغه داچي دا معما ئې د (يونس) په نامه تصور کړې ده. که د يونس او نورو شاعرانو دېوانونه په دقت سره وکتل سي، ترې څرګندېږي چي شاعر په مقطع کي هغه وخت خپل نوم د معما په شکل راوړي چي يا د ادبي صنعت (غيرمنقوط صنعت) مجبوري وي، يا ئې نه وي غوښتي چي خپل نوم په

صراحت سره راوړي. په پورتنۍ معما کي یونس خپل نوم د مقطع په دوهم نیم بیتي کي راوړی دئ، نو د دوهم وار راوړو له پاره ئې د معما جوړولو ضرورت نه وو. طبیعي ده چي پر دغسي یوه ناسم تصور (کږې خښتي) باندي چي د استدلال او محاسبو دېوال تر ثریا پوري لوړ سي، لا به هم کوږ وي.

دوهمه حسابي غلطي دا ده چي وایي (۲۳۸) که پر(۲) تقسیم سي، (یونس = ۱۲۶) په لاس راځي؟! (۲۳۸) چي پر دوو ووېشل سي (۱۱۹) پاتېږي، یا (۱۲۶) که دوه چنده سي (۲۳۸) په لاس نه راځي، بلکي (۲۵۲) په لاس راځي.

د استدلال او محاسبو دغو غلطیو زموږ یوه اروابښاد محقق ته مېله جوړه کړې ده او په (پټه خزانه فی المیزان) کي ئې د خپل مدعا (د پټې خزانې د جعلیت) د اثبات له پاره د پورتنۍ معما پر دغه ناسم حل باندي ښه پوره شخوند وهلی دئ او د دې پر ځای چي د دغې حسابي تېروتني له پاره یو سم حل پیدا کړي، د تصور نیلی ئې په هوا کي ځغلولی دئ او د تصوراتو په دې هوایي اټکلو کي پخپله هم څو ځایه تېروتلی دئ.

اروابښاد ناقد تر دې ځایه پوري سم روان دئ چي وایي دغه معما "د یونس سره څه علاقه نه لري بلکې لکه چې څنګه عرض وکړی شه دَهغه دَ اَب (پلار) او جد (نیکه) سره تعلق لري ..." [1]. ناقد مرحوم د یونس په دېوان کي د اعدادو ضرب و تقسیم هماغسي کړی دئ، لکه ما چي پورته کښلی دئ. تر دغه ځایه پوري د ناقد نقد سهي دئ.

تر دې وروسته وایي چي (۱۵۶) د یونس (اَب = پلار) او (۷۲) ئې

---

[1] وګ: پټه خزانه فی المیزان – ۳۰ مخ. نقل قول د کتاب پخپل مخصوص لیکدود کټ مټ رانقل سوی دئ. د دغه لیکدود اردو وشمه پرته "ی" زه د خپل کمپیوټر په پروګرام کي نه لرم او هغه مي د بې ټکو (ی) په شکل راوړې ده. هیله ده ښاغلي لوستونکي مي عذر ومني (هوتک).

(جد= نیکه) دئ. دا خبره هم د بیت له الفاظو څخه یو څه سمه ایسي. یونس غواړي چي د خپل پلار نوم موږ ته راوښيي، نه د (جد= نیکه) نوم. دا چي په مقطع کي ئې له (اَب) سره (جد) یو ځای کړی دئ، سبب ئې دا دئ چي له یوې خوا ئې د غزلي قافیوي تسلسل ساتلی دئ ځکه نوري قافیې ئې (حسد، ابد، بد، نمد، قد، عدد، مرقد، حد، ید) دي او د مقطع قافیه هم باید پر دغه وزن او ریتم باندي برابره وای. دوهم دا چي د (ابجد) په کلمه ئې په یوه غشي دوې نخښي ویشتلي دي، هم ئې لوستونکي ته د خپل پلار د نامه قرینه په لاس ورکړې ده او هم ئې د ابجد له حساب څخه د استفادې لارښوونه ورته کړې ده.

د (آب) او (جد) له پاره ناقد مرحوم بیا د هوا نیلی ځکه ځین کړی او د تصوراتو لار ئې ځکه په خوله ورکړې ده، چي دی خو پټه خزانه جعلي ګڼي او هورې چي د یونس د پلار نوم (نورمحمدخان) لیکل سوی دئ، هغه هم له ځانه جوړه سوې خبره بولي. ده لیکلي دي:

"دا (۱۵۶) او (۷۲) د چا نومونه دی؟ هسی خو دَ دې عددونو ځنې ډېرې نامې جوړېدې شی خو هر کله چې دَ دیوان دّ معمو حل دَ "محمدی" په دسخط شوی دی نو پکار دی چې دَ دې عدد اولنی تعلق "محمدی" سره فرض کړی شی ...". تر دې خبرو وروسته یو وار ئې د یونس د پلار نوم (محمدی جان = ۱۵۶) او د نیکه نوم ئې (احمدجیو= ۷۲) ګڼلی دئ، بیا ئې پر "دوه اویا" د دوه ځله (۷۰) یعني (۱۴۰) خیال کړی دئ او د یونس د پلار نوم ئې (یوسف = ۱۵۶) او د نیکه نوم ئې (یسع = ۱۴۰) تصور کړی دئ. البته په قرآن عظیم کي د نبي په توګه د (یسع) نوم دوه واره راغلی دئ (سورة الانعام: ۸۶ آیت او سورة "ص" ۴۸آیت) خو په پښتنو کي د دغه نوم څرک زه نه لرم او خدای سته، که مي تر ننه پوري اورېدلی دئ.

د ناقد په خبرو کي دا خبره حقیقت لري چي د یونس د دېوان ځیني

معماوي د (محمدي) په لیک او دسخط حل سوي دي او دا نوم د مصحح په قول (محمدي صاحبزاده) ګڼل سوی دئ. خو دغه پورتنۍ معما د (محمدي) دسخط نه لري او ښاغلي بختاني خدمتګار حل کړې ده. ناقد دغه ځای ته دقت نه دئ کړی. له بلي خوا د (محمدي صاحبزاده) په قلم د یونس د دیوان د معماوو حل کول، د دې له پاره دلیل کېدلای نه سي، چي د یونس د پلار نوم دي نو هم (محمدي) یا، دې ته ورته نوم وي!

دا معما ما (هوتک)اول سمه لیکلې ده، بیا مي حل کړې چي خپله څېړنه غواړم له ښاغلو لوستونکو سره شریکه کړم. یونس د معماوو په جوړولو کي خورا زیات ماهر دئ. د معما د جوړولو اول کمال باید دا وي چي لوستونکی ژور فکر ته راوبولي. داسي کلمې پکښې کار کړي چي لوستونکی ئې په اول نظر مفهوم ته و نه لوېږي. په دغه معما کي یوه کلمه (نم) ده . خطاط دغي کلمې ته دقت نه دئ کړی او ( نام) ئې لیکلې ده. ملامت هم نه دئ ځکه (دوه نام) تر (دوه نم) ژر ذهن منلای سي. خو په دې معما کي د شاعر مراد ( نم) دئ، (نام) نه دئ.

چي سل شپږ پنځوس و دوه اویا دوه نم که
هغه پوه ګڼه یونس په ابجد ستا

حل ئې داسي دئ: ۱۵۶ + ۷۲ = ۲۲۸

په حساب کبیر (جُمَل) کي له ښی خوا څخه د یوه عدد اول رقم (اُحاد)، دوهم رقم (عشرات)، دریم رقم (مِآت) نومېږي. خواجه ابو نصر فراهي ویلي دي:

یگان یگان شمر ابجد حروف تا حطی
چنانکه از کلمن عشر عشر تا سعفص
پس آنگه از قرشت تا ضظغ شمر صد صد
دل از حساب جُمل شد تمام مستخلص

د یونس د دېوان په دغه معما کي (۲۸) د عشرات په کور کي شامل دي. (عشر) په پښتو (لس) ته وايي. د (لس) ابجدي ارزښت (ل = ۳۰ + س = ۶۰ = ۹۰) کېږي. د (نم) ابجدي ارزښت هم (۹۰) دئ يعني (ن = ۵۰ + م = ۴۰ = ۹۰). شاعر موږ ته وايي چي د "سل شپږ پنځوس او دوه اويا" يعني (۲۲۸) د عشرات = لس = نم = ۹۰) کور دوه چنده کړئ. په (۲۲۸) کي د عشراتو کور(۲۸) دئ او دا چي دوه چنده سي (۵۶) کېږي او نتيجه به (۲۵۶) راووځي. دا عدد د (نور) کلمې ابجدي ارزښت هم دئ يعني ( ن = ۵۰ + و = ۶ + ر = ۲۰۰ = ۲۵۶).

(نور) د یونس د پلار نوم دئ او د پټې خزانې دا روايت چي وايي: "... محمدیونس ،... په قوم موسی خېل و چه پلار ئې نورمحمدخان له موسی خېلوڅخه د کسې د بابړو سره راغلی او په خیبر کي اوسېدئ،..."[1]. د یونس پخپل کلام کي هم ملاتړ لري. یونس پخپلو اشعارو کي (محمدیونس) نه ليکي او د پلار له نامه سره ئې هم (محمد) نه دئ کښلی.

په زړه پوري دا ده چي په هغه بيت چي ناقد غوښتي دي د پټې خزانې جعليت ثابت کړي، د هغه بيت په سم لوستلو سره د پټې خزانې اصليت ثابت سو.

* * *

دا بل بيت هم د معما رنگ لري:

په يو ه خال يو په لس شي عجب نه دی
که په دو ه خـاله شمېره شي ده په صـد
(۷۰مخ)

په لمنليک کې ورته کښلي دي:

"په دې دوو بيتو کښې د الف قدې معشوقې داسې توصيف وشو چه

---

[1] پټه خزانه، اول چاپ ۱۱۵مخ.

که يې يو خال په مخ کښېږدو نو ښايست يې يو په لس او په دوو خالونو يو په سل کېږي.

لکه څرنګه چه الف هم د ليک له مخه (ا) او هم د ابجد د حساب له مخه يو (۱) دی که د هغه په مخ کښې يو ټکی (۰) کښېږدو، لس (۱۰) او په دوو ټکو(۰۰) سل (۱۰۰) جوړېږي". فهوالمراد.

* * *

بل بيت:

چه عيسى موسى په لاس د يونس شته دی
سـر وږيره ځنې وسـاته غـمازه
(۱۰۲مخ)

د ديوان مصحح ورته کښلي دي: "دغه بيت ما ته معماښکاري، د ګرانو لوستونکو توجه غواړم".

د دې معماحل ما (هوتک) داسي مونډلی دئ:

د دوهم نيم بيتي "سر و ږيره" له يوې خوا هغي تاريخي کيسې ته تلميحي اشاره لري چي د يونس د ديوان مصحح په لمنليک کي داسي راوړې ده: "د مذهبي آثارو د رواياتو له مخه حضرت موسى عليه السلام په وړکتوب کښې د فرعون په کور کښې لوی شوی دی. وايي کله چي فرعون، ماشوم موسى په غېږ کښې نيوه، نو موسى د فرعون د ږيرې سره لوبي کولې او په پای کښې موسى د فرعون د سر خطر شو". له بلي خوا لوستونکی د معما د حل پر لور رهبري کوي او د قرينې په توګه ورته وايي چي خبره د عيسى و موسى په "سروږيره" کي ده. د عيسى او موسى سر وږيره په ترتيب سره د (عي) او (مو) توري دي چي ابجدي ارزښت ئې (۸۰) او (۴۶) دئ. په دې ډول: (ع = ۷۰ + ی = ۱۰ = ۸۰) او (م = ۴۰ + و = ۶ = ۴۶). د دې عددو مجموعه (۱۲۶) کېږي چي د (يونس) له ابجدي ارزښت سره برابره ده او ګويا عيسى و موسى د يونس په لاس کي سته، نو

**شاعر غماز ته وايي چي ته دي پر ځان پام کوه. فهوالمراد.**

***

**بل ځای د عبدالرحمان بابا د وفات په ويرنه کي وايي:**

له رحمانه فيض ياب عــبد الرحــمان شه
چه له دې سرايه په نوي سرای مهمان شه
(۱۱۴مخ)

**دغه مهمه تاريخي ماده زما فاضل استاد علامه رشاد رحمة الله عليه حل کړې ده چي زه به ئې د "رحمن بابا په کوم کال کړ دئ؟" مقالې دغه اړونده برخه د هغوی له ټولو تشريحاتوسره ځکه رانقل کړم چي (د محمدهوتک ياد) نومې مجموعې په ۳۵ – ۴۸مخونو کي دغه مقاله د چاپ يو څه تخنيکي گډوډۍ لري، حاشيې پر ځای سمي نه دي ايښوول سوي او د علامه مرحوم له ليکدود څخه ځای ځای سرغړونه سوې ده.**

**علامه مرحوم د دغي مقالې په يوه برخه کي ليکلي دي:**

**"دا بيت په پښتانه شعراء کي د اقتباس سوي ټوټې دوهم او د يونس په ديوان کي د غزلي اووم بيت دئ. خو سره له دې چي نه مطلع دی او نه حسن مقطع، بيا هم تصريح لري يعني دواړه نيم بيتي ئې سره هم آهنگه دي. زماپه خيال دا اعنات[۱] شاعر ځکه کړی دئ چي د لوستونکو توجه دغه بيت ته ورواړوي او دا وروپوهوي چي په دغه بيت کي څه خاص مطلبونه سته.**

**له دغه بيته د تاريخي مادې استخراج په پنځه ډوله کيږي:**

**۱ – (پنوي سرای مهمان = ۴۷۵) + ( عبدالرحمن = ۴۰۵) + (رحم =**

---

[۱] اعنات هغه صنعت ته وايي چي شاعر بې له کوم لزومه پر ځان باندي التزام کنښېږدي. په دَغه بيت کي شاعر مجبور نه وو، چي دواړو نيم بيتيو ته قافيوي هم آهنگي ورکړي مگر پر ځان ئې دا التزام د يوه خاص مقصد له پاره ايښی دئ (هوتک).

۲۴۸) = ۱۱۲۸

"رحمان" د ډېر رحم کوونکي په معنا د "راحم" د مبالغې صیغه ده لکه: سکران (ډېر نشه)، هیبان ( ډېر بېروونکی) چي د لومړي په زوَر ویل کېږي.

په دغه بیت کي د رحمان. له "فیض" څخه مراد د رحمان "رحم" دئ او د معماپه اصطلاحاتو کي دغه عمل "تبدیل" نومېږي، "فیض" ئې فاسد او "رحم" ئې کائن دئ[1]. چي د "یاب" کلمې په قرینه سره په نوره تاریخي ماده پوري نښلول سوی دئ.

حسن توارد دئ چي د دغي تاریخي مادې د لومړي عبارت بشپړه جمله "پنوي سرای مهمان شه" که په عربي ژبه واړوله سي، هم دغه تاریخ څني راوزي، په دې ډول:

(ضییف[2] = ۹۰۰) + (بدار= ۲۰۷) + (جدید= ۲۱) = ۱۱۲۸.

له دې امله چي معمایان مشدده یاء پر (۲۰) نه شمېري، کېدای سي دغه عربي جمله داسي وویله سي: ضَیِفی بِدَارِجَدِید.

د دې عربي جملې معنا به نو دا وي چي "الرحمان" دی په نوي سرای کي خپل مېلمه بللی دئ.

۲ – (د[3] دې سرای = ۲۸۹) + (عبدالرحمن = ۴۰۵) + (رحمن[1] =

---

[1] د معما پوهان مبدل منه "فاسد" بولي او مبدل ته "کائن" وایي – فاسد غیرمطلوب او کائن په معما کي مطلوب جزء وي. (وګ: کشف الرموز د تبدیل بحث).

[2] د تضییف له مصدره څخه د واحد مذکر غائب له پاره د ماضي زمانې مجهوله صیغه "ضییف" راځي چي د ضاد په پېښ ویل کېږي. "مهمان شه" هم د مهمان کېدل (مېلمه کېدل) له مصدره څخه کټ مټ دغه صیغه ده، البته زیاتره پښتانه د "شه" پرځای "شو" وایي.

[3] "له" او "د" په پښتو کي د ابتداء معنوي توري دي. "د" د اضافت معنوي حرف هم دئ – معمایان کله یوه کلمه راوړي مګر مراد ئې د هغې کلمې بل مرادف وي لکه په

**۲۹۸) + (مهمان = ۱۳۶) = ۱۱۲۸.**

**دلته "رحمن" د "فیض یاب" په قرینه سره په تاریخي ماده کي راغلی دئ.**

**۳ که د ذکر سوي بیت په لومړي نیم بیتي کي راغلی "رحمان" مضاف الیه او "عبدالرحمان" (شاعر) مضاف وبولو، او د " فیض یاب" په حکم د اضافت معنوي توری" د "د ترکیب په سر کي ورزیات کړو، نو داسي عبارت به لاس ته راسي:**

د رحمان عبد الرحمان

**د حساب الکبیر[۲] د قاعدې له مخي له دغه عبارت څخه (۱۴۱۹) لاس ته راځي چي د (زر سل اته ویشت) له ابجدي ارزښتو سره برابرېږي. معادله ئې داسي ده:**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| د (دال) | = | ۳۵ | ز | = | ۷ |
| ر (راء) | = | ۲۰۱ | ر | = | ۲۰۰ |
| ح (حاء) | = | ۹ | س | = | ۶۰ |
| م (میم) | = | ۹۰ | ل | = | ۳۰ |
| ا(الف) | = | ۱۱۱ | ا | = | ۱ |

---

عربي کي چي "من" راوړي او "عن" ځني مراد وي. دلته د "له" او "د" یو له بله سره اړول (تبدیل) هم له دغي مقولې څخه دئ.

[۱] دا د دغي کلمې قرآني رسم الخط (لیکدود) دئ.

[۲] د محمد هوتک یاد په ۴۴مخ کي یوه حاشیه په دې ډول راغلې ده: "په حساب الکبیر کی د تورو د شعرونو کی نه راځی او که کوم دی". زه (هوتک) له دغي جملې څخه پوره مطلب نه سم اخیستلای؟ بنایي د علامه استاد مرحوم مراد دا دئ چي دلته د تورو د تلفظ عدد شمېرل کېږي. د مثال په توګه په جُمل کي (د = ۴) دئ خو د یوې بلي قاعدې له مخي (د = دال = ۳۵) کېږي. په دې لاندي معادله کي هم د تورو د تلفظونو ابجدي ارزښتونه راوړل سوي دي او ما په لېندو کي اړوند تلفظ ورسره کښلی دئ.

ن (نون) = ۱۰۶
ع (عين) = ۱۳۰
ب (باء) = ۳
د (دال) = ۳۵
ا (الف) = ۱۱۱
ل (لام) = ۷۱
ر (راء) = ۲۰۱
ح (حاء) = ۹
م (ميم) = ۹۰
ا (الف) = ۱۱۱
ن (نون) = ۱۰۶
ټول = ۱۴۱۹

ت = ۴۰۰
هـ = ۵
و = ۶
ی = ۱۰
ش = ۳۰۰
ت = ۴۰۰
ټول = ۱۴۱۹

۴ – که د ذکر سوي بيت په دوهم نيم بيتي کي راغلی "نوی سرای" مضاف اليه او "مهمان" مضاف وبولو او د اضافت معنوي توری"د" د ترکيب په سر کي ور زيات کړو، نو داسي عبارت به لاس ته راسي:

د نوي سرای مهمان

د حساب الصغير د قاعدې له مخي له دغه عبارت څخه (۵۷) لاس ته راځي او د "زرسل اته ويشت" له هغه ابجدي ارزښته سره برابرېږي چي د حساب الصغير د قاعدې له مخي حاصلېږي. معادله ئې دا راز ده:

د = ۴
ن = ۲
و = ۶
ی = ۱۰
س = صفر

ز = ۷
ر = ۸
س = صفر
ل = ۶
ا = ۱

| | | |
|---|---|---|
| ر | = | ۸ |
| ا | = | ۱ |
| ی | = | ۱۰ |
| م | = | ۴ |
| ه | = | ۵ |
| م | = | ۴ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۲ |
| ټول | = | ۵۷ |

| | | |
|---|---|---|
| ت | = | ۴ |
| ه | = | ۵ |
| و | = | ۶ |
| ی | = | ۱۰ |
| ش | = | صفر |
| ت | = | ۴ |
| ټول | = | ۵۷ |

**۵ – د پښتو ژبي په ځينو لهجو کي "نوی" کلمه په غير مستقيم حالت کي " نويي – Nawyi" وايي. که د ذکرسوي بيت په دوهم نيم بيتي کي راغلی "نوی" کلمه چي په غيرمستقيم حالت کي ده، نويي (Nawyi) ولوستله سي، نو هغه نيم بيتی به داسي کښل کېږي:**

"چه له دې سرايه په نويي سرای مهمان شه"

**له دې تاريخي مادې څخه هم د جُمل په حساب ۱۱۲۸ راوزي. په دې ډول:**

| | | |
|---|---|---|
| چه | = | ۸ |
| له | = | ۳۵ |
| دې | = | ۱۴ |
| سرايه | = | ۲۷۶ |
| په | = | ۷ |
| نويي | = | ۷۶ |
| سرای | = | ۲۷۱ |
| مهمان | = | ۱۳۶ |

شه = ۳۰۵
ټول = ۱۱۲۸

د مرثیې په یوه بل بیت کي "نوبهار" کلمه راغلې ده. زه چي د معما په فن کي د یونس مهارت ته ګورم[1]، ګومان مي دا دئ چي دلته به د نوبهار کلمه د ربیع الاول (لومړۍ خور) معنا لري او حسن توارد دا دئ چي د دغه کال د نوروز ورځ د ربیع الاول له پنځه ویشتمي ورځي سره برابره هم ده. که زما دا ګومان سهي وي نو د رحمان بابا مرګ به د ۱۱۲۸ هـ ق کال د ربیع الاول په وروستۍ هفته کي پېښ وي. هغه بیت چي "نوبهار" پکښې راغلی دئ، دا دئ:

انجـمن د ښــو یارانو، نوبهار دئ
جدایي وربانديي پیر وکه خزان شه

د پټې خزانې د خطي نسخې په ۴۵ مخ کي د رحمان بابا د مرګ کال د ۱۱۲۸ پر ځای په عدد سره ۱۱۱۸ ښوول سوی دئ، سهوالفکر نه دئ. دا یوه عددي تېروتنه ده چي د مطلوبي سنې د عشراتو په کور کي پېښه سوې ده. کېدای سي د دې سهوالقلم سبب د پټې خزانې د نقل کوونکي هغه تلوار وي چي ده د کتاب په پای کي د "باستعجال تمام قلمی شد" په جمله سره د هغه عذر غوښتی دئ او زما په خیال د دغه استعجال نتیجه به وي چي د خطي پټې خزانې په شپاړسم مخ کي د "ژمي" کلمه په "دوبي" ځني اوښتې ده او په ۹۶ مخ کې عبدالقادر خان خټک د حلیمې د ورور پر ځای د حلیمې پلار کښلی دئ. د نقل کوونکی دې ته نه دئ پام سوی چي د ده پخپل قلم درې لیکي (کرښي) دمخه حلیمه د نوموړي عبدالقادر خان

[1] دلته علامه مرحوم په لمنلیک کي د یونس د دېوان د معماوو شمېر او د هغو د حل په باب لنډه ځرګندونه کړې ده او په دغو معماوو کي ئې یوه ناحله معما حل کړې ده چي زه به ئې د دې کتاب په بل ځای کي را نقل کړم.

خټک سکه خور بلل سوې ده.

***

د یونس د چاپي دیوان په (۱۸۴ مخ) کي یوه شپاړس بیتیزه غزله راغلې ده چي هر بیت ئې یوه معما ده. له دغو شپاړسو معماوو څخه پنځلس دانې د (محمدي) په قلم پر حاشیو باندي په پارسي ژبه حل سوي دي. دغه (محمدي) د دیوان د مصحح په نظر د څمکنو د میاعمر صاحب رحمة الله علیه مشر زوی (محمدي صاحبزاده) دئ.

دا نظر زموږ نورو محققینو تائیدکړی هم دئ. زه به د دغومعماوو د حل ژبه له پارسي څخه پښتو ته له یو څه اضافاتو سره یو ځای ځکه راواړوم چي یوازي به مي د ټکي په ټکي ناقل رول لوبولي نه وي او خپله ونډه به مي هم یو څه پکښې شامله کړې وي.

د غزلي اول بیت د "بیگ" په نامه معماده:

چه محرم یې د کعبې وایي په راه
مې باید نهفته ذِکــر کا د مـــاه

حل:

مُحرِم (احرام تړونکی، حاجي) د کعبې پر لار " لبیک" وایي. "ماه = میاشت" دېرش ورځې ده او لام د ابجد په حساب هم (۳۰) دئ چي له "لبیک" څخه (نهفته) سي یعني پټ سي، "بیک" یا "بیگ" پاتېږي. دلته د "تبدیل" عملیه راغلې ده. شاعر "ماه" وایي مگر مراد ئې د (لبیک) کلمې لام دئ. دلته "ماه" ته د معما په اصطلاح فاسد (غیر مطلوب)، لام ته کائن (مطلوب) ویل کېږي.

***

د غزلي دوهم بیت د " محمد" په نامه معما ده:

په ویل آخــر د مـــدح مقـــدم کـــړه
سر د مُلک ئې کړه په سر باندي کلاه

حل:

د (مدح) آخر (ح) ده چي سر ته ورولوېږي، (حمد) ځني جوړېږي او د (حمد) پر سر چي د (مُلک) سر یعني (م) خولۍ (کلاه) سي، (محمد) لاس ته راځي.

***

د غزلي دریم بیت هم د "محمد" په نامه معما ده:

له نسکوره خُمه یو څڅوبکی پرېووت
له مدهوشه نه هوش لاړ په هغه ساه

حل:

(خُم) چي نسکور یعني سرچپه سي، (مخ) لاس ته راځي او "څڅوبکی" یعني ټکی چي ځني پرېوزي (ولوېږي)، (مح) تري جوړېږي. له "مدهوش" څخه چي "هوش" ولاړ سي، (مد) پاتېږي او (مد) چي له (مح) سره یو ځای سي (محمد) لاس ته راځي.

***

د غزلي څلرم بیت د "صمد" په نامه معما ده:

چه یکی په میان د صد کښي نهاده شي
د یار اسم ځني خېژي خواه ناخواه

حل:

"یکی" د ابجد په حساب (۴۰) کېږي: (ی = ۱۰ + ک = ۲۰ + ی = ۱۰ = ۴۰).

د (م) ابجدي ارزښت هم (۴۰) دئ. شاعر وایي چي (م) د (صد) په "میان" کي کښېږده او له هغه څخه به (صمد) جوړ سي. دا چي د (م) پر ځای ئې (یکی) کلمه راوړې ده، دلیل ئې له (صد) سره حُسن تلازم دئ او شعر ته ئې یو څه رنګیني ورکړې ده.

***

**د غزلي په پنځم بیت کي د (لطیف) په نامه معما سته:**

ستا د مخ طومار مې درست لوستلی نه و
طې په زلف ســـرانداز و کښې شـــه، آه

**حل:**

**"زلف سرانداز" معنا د (زلف) ویي څخه سر ایسته کړه چي (لف) پاته سي. د (لف) په منځ کي (طې = ط + ی) ورواچوه چي (لطیف) ځني جوړ سي.**

***

**په شپږم بیت کي د (رفیق) په نامه معما ځای سوې ده:**

یو نقطه[1] کړه له اوله د نرم لیرې
له دغه نه به پیدا شي ستا هـمراه

**حل:**

**په دې معما کي د تبدیل عملیه باید تر سره سي. شاعر یوه کلمه لیکي، خو مراد ئې د هغې معادل کلمه ده. دلته په لیکنه کي (نرم) راغلی دئ چي غیرمطلوب (فاسد) دئ. مطلوب ئې د نرم معادل لغت (رقیق) دئ چي (کائن) ورته ویل کېږي. د (رقیق) له اول قاف څخه چي یوه نقطه لیري سي، (ف) پاته کېږي او له ټولي کلمې څخه (رفیق) جوړېږي.**

***

**په اووم بیت کي د ( جعفر) په نامه معما سته:**

د ستا عفو مې په جرم کښې ده یاره
منـــتها د دوارو نشـــــــته کارآګاه

**حل:**

---

[1] په چاپي دېوان کي (یوه نقطه) لیکل سوې ده چي په ګرامري لحاظ خو صحیح ده، مګر د بیت وزن ئې یو سپوږ (څپه) زیات کړی دئ. (نرم) هم باید یوه څپه ولوستل سي.

د (عفو) او (جرم) څخه چي منتها (و) او (م) ليري سي، (عف) او (جر) پاتېږي. (عف) چي په (جر) کي داخل سي، (جعفر) څني جوړېږي. د (عفو) او (جرم) ادبي تلازم بيت ته رنګيني وربخښلې ده.

✶✶✶

په اتم بيت کي د (نجم) په نامه معما ځای سوې ده:

نی ناقص له جام اجوفه سره وايه
اشنا وباسه له دې مشـــکله چاه

حل:

ناقص (نی) يعني (ن) او اجوف (جام) يعني (جم). د دواړو له يو ځای کېدلو څخه (نجم) جوړېږي. فهوالمراد.

اجوف هغي کلمې ته ويل کېږي چي منځ ئې تش سوی وي. د دې له پاره چي د (جام) کلمې منځ تش سي (الف) ئې بايد وغورځول سي.

✶✶✶

په نهم بيت کي د (قطبی) په نامه معما سته:

قد د يار او طوبی مــه وای چه دوه وای
يو له دوو وای تر دوه تېر شه نيک خواه

حل:

(قد) او (طوبی) سره يو کړه (يو ځای ئې کړه) چي (قدطوبی) سي. په دې کلمه کي تر دوو تورو تېر سه، يعني تر (دال) او (واو) تېر سه چي (قطبی) پاته سي. او همدا ئې مطلوب حل دئ.

✶✶✶

نهم بيت د (شبلی) په نامه يوه معما:

د فلک طاس دي نګون شي چه خونخوار دی
همېــــــشه په وينـو ډک د بې ګــــــــناه

د دې معما حل په چاپي دېوان کي نسته او په لمنليک کي ئې ورته

کښلي دي: "دا معما د قلمي نسخې په حاشیه کښې چا حل کړې نه ده او زمونږ له خوا هم ګرانولوستونکو ته پاته شوه".

ما (هوتک) ئې حل داسي وموند:

حل: د "خونخوار" کلمه که د قرینې په توګه ومنو، نو دلته د شاعر مراد له خونخوار څخه (شِبَل) دئ. شبل په قاموسو کي د "بچه شیر درنده" په معنا ثبت دئ (غیاث). "درنده" صفت له خونخوار سره هم وایي. ګویا د شاعر مراد (شبل) دئ. له (شبل) څخه (شبلي) په دوه ډوله جوړېدلای سي.

اول ډول ئې دا دئ چي شاعر (طاس = جام) کلمه راوړې ده خو مراد ئې (می = شراب) دي. (می) چي نګون سي یوازي (ی) پاتېږي او له (شبل) سره تر یو ځای کېدلو وروسته (شبلی) کېږي.

دوهم دا چي د "نګون" کلمه د (زېر) په معنا واخلو. (زېر) لاندي ته هم وایي او د کلماتو حرکت (کسره) هم (زېر) بلل کېږي. که د (شبل) لام ته د (نګون) په قرینه (زېر) ورکړو، (شبلِ) یا(شبلی) لاس ته راځي.

* * *

په لسم بیت کي د (عماد) په نامه معمار اغلې ده:

مګر بیا مي و بســـمل ته تیاریږي

چه لمن عمدا په میان کړه هغه شاه

حل:

د (عمدا) کلمې لمن (الف) دئ. دغه الف چي د کلمې میان ته یووړل سي، (عماد) څني جوړېږي.

* * *

د یوولسم او دوولسم بیت معما د (قاسم) په نامه ده:

غنچې خار لکه خنجر په لاس کښې واخست

یــو قابــل یــې د بــسمل وغو ښــت همــراه

پــه بلبــل بانــدې اختــر شــه لــه دې شــوقه
لـــه دغـــه میانـــه وروالـــوت بـــې پـــرواه

**حل:**

**د محمدي له خولې ویل سوي دي چې له "قا" سره چې "بسم" یو ځای سي، (قابسم) ځني جوړېږي او (ب) چې ئې له میانه والوزي، (قاسم) پاتېږي.**

✶✶✶

**د دیرلسم بیت معما د (بهار) په نوم ده:**

چه یې سر په ځای د پښو، پښې یې سر شوای
دا ســـــزا (ئې) د راهب غــوندي هــمراه

**حل:**

**د (راهب) سر چې پښې او پښې ئې سر ته ولاړې شي، یعني معکوس (سرچپه) سي "سزا ورکړه سي"، بهار ځني جوړېږي.**

✶✶✶

**څورلسم بیت د (وحید) په نامه معماده:**

قدح ونیسه په لاس کښې فارغ کښېنه
پای ســـرولـــره ورکړه د قــد جـــاه

**حل:**

**له (لاس) څخه مراد عربي (ید) دئ. (قدح) چې ئې سر ته ورولوېږي،(قدحید) ورڅخه جوړېږي. د (قد) پر ځای چې د (سرو) کلمې پای (و) واچول سي، (وحید) ځني جوړېږي.**

✶✶✶

**پنځلسم بیت مقطع ده او د شاعر پخپل نامه (یونس) معما سوې ده:**

چه د قول لام دریمه حصه کم شي
باقي قــول د یونس په نام گــواه

حل:

د (قول) ابجدي ارزښت (۱۳۶) دئ. د (ل) ابجدي ارزښت (۳۰) دئ. دریمه حصه ئې (۱۰) کېږي. دغه دریمه حصه (۱۰) چي له (۱۳۶) څخه کمه سي، (۱۲۶) پاتېږي. د (یونس) ابجدي ارزښت هم (۱۲۶) دئ.

* * *

د یونس د چاپي دېوان په (۱۹۳مخ) کي یوه اته بیتیزه غزله سته چي اووه معماوي پکښې ځای سوي دي. په دې معماوو کي دوې د چاپي دېوان مصحح، څېړندوی خدمتګار حل کړي دي. نوري پنځه پاته دي. په دغو پنځو کي یوه علامه رشاد مرحوم حل کړې ده او درې ئې ما (هوتک) کړي دي. یوه دانه ئې چي د (خدابِردی) په نامه ده، ناحله پاته ده.

د غزلي د لومړي بیت (مطلع) معما د (توری) په نامه ده:

چه موقوف د ستا په اسم زما کام شه
نیم ابرو هـلال دې تام لره تمام شـه

په دېوان کي ناحله پاته ده. حل ئې ما (هوتک) داسي موندلی دئ:

له (دستا= دتا) څخه مراد (تو) دئ. هلال، نرۍ میاشت د (قوس = لیندۍ) په شکل وي. د لیندۍ "نیم ابرو" د (ر) شکل لري له (تو) سره چي یو ځای سي، (تور) ځني جوړېږي، د هلال چي تام (بشپړ) سي، لیندی ئې پوره کېږي یعني پخوا چي کنډو وه، (ی) ئې نه درلوده. چي پوره سي (ی) باید پر زیاته سي. پر (تور) چي (ی) زیاته سي، (توری) ځني جوړېږي.

* * *

په دوهم بیت کي د (محمد) په نامه معماده:

واخـله دوه میمه فقط له یوه میمه
امر بې نُقَطه لوله، د دوست نام شه

دا معماهم په دیوان کي ناحله پاته سوې ده. ما (هوتک) داسي حل

کړه:

(واخله) د امر صیغه ده چې په عربي کې (خُذ) ورته وايي. له (خذ) څخه چې نقطه ایسته سي، (حد) پاتېږي. له (حد) سره چې دوه میمه یو ځای سي، (محمد) ځني جوړېږي. فهوالمراد.

* * *

په دریم او څلرم بیت کې د (یوسف) په نامه معمار اغلې ده:

له یعقوبه پونده لیرې شوه ښه نه وه
په هغه عوض بهي ورته انعام شه
بیا هغه بهي چه پښه ورلره نه وه
د یوسف اسم ترې هله سرانجام شه

دا معما په دېوان کې ناحله پاته ده. علامه رشاد رحمة الله علیه حل کړې ده. په دې ډول:

په عربي پونده "عقب" بولي. د عقب کلمې توري چې له یعقوب څخه وباسئ، "یو" پاتېږي. د بهي مېوه په عربي "سفرجل" بولي او پښې ته "رجل" وايي. رجل چې له سفرجل څخه وباسئ، "سف" پاتېږي. "یو" چې له "سف" سره وتړئ، یوسف سو. (د محمدهوتک یاد: ۴۷ مخ).

* * *

په پنځم بیت کې د (قوام) په نامه معما سته:

د زُهادُ زړه لـه ډېرې ریا ډک دی
جمع قوم یې بې سره کړ قوام شه

دا معما په دیوان کې داسې حل سوې ده:

د (قوم) جمع (اقوام) دی، چه بې سره شي، یعني د سر توری چه الف دی ایسته شي نو (قوام) پاته کیږي.

* * *

د شپږم بیت معما د (کلیم) په نامه ده:

که یار صاف کرم که درد ستم دی

په میان د این وآن ثابت اقدام شه

**دا معماهم په دېوان کي ناحله پاته ده. ما (هوتک) داسي حل کړې ده:**

**(کرم) چي صاف شي (ک) پاتېږي. د ستم او درد معادل لغت (اَلَم) دئ چي له (ک) سره یو ځای سي (کالم) کېږي. د (این) میان (ی) ده. دغه (ی) چي د (کالم) دالف پرځای ثبت یا ثابته سي، کلیم ځني جوړېږي.**

***

**د اووم بیت معماد (خدابِردی) په نامه ده :**

څه ښه شپه وه چه مې یار په لاس ساغر که

مـــنور یې په جـــمال د مـــیو جـــام شه

**دا معماپه دیوان کي ناحله ده. زما هم اوس نوک نه په جګېږي. بل وخت ته دي پاته وي.**

***

**د غزلي مقطع د (یونس) په نامه ده:**

څو چه نیم لب یې نمک اخیستی نه دی

د یونس نمکي اســم پرې حـــــرام شه

**دا معماد دېوان مصحح حل کړې ده. په دې ډول:**

**لب د ابجد په حساب (۳۲) کیږي، چه نیم یې کړو (۱۶) شي.**

**نمک (۱۱۰) راځي چه (۱۶) ورسره یو ځای شي نو (۱۲۶) ترې جوړیږي.**

**د یونس نوم هم په دغه حساب (۱۲۶) کېږي.**

***

## د پیرمحمدکاکړ په کلام کي

پیرمحمد کاکړ د دېوان په الف ردیف کي یوه غزله په غیرمنقوط صنعت کی ویلې ده. د دې غزلي په مقطع کي ئې خپل نوم ځکه نه سوای راوړلای چي هغه خو منقوط دئ. ده په دغه مقطع کي خپل نوم د معما په شکل راوړی دئ:

محمدرسول امام د کل عالَم وو
دا مسلم له دله مدح د امـــام کا
(۵۷ مخ، د صحاف چاپ)

(امام) کلمه د همزې په زېر (کسره) سره د (پېشوا) معنا لري. (پیر) هم د خپلومریدانو له پاره د لاربښود او پېشوا مقام لري او په دغه مقطع (امام) له (محمد) سره د شاعر د نامه (پیرمحمد) له پاره راوړل سوی دئ.

٭٭٭

د دېوان په پای کي ئې د هغه د بشپړېدو کال (۱۱۹۶هـ ق) هم په یوه صریحه تاریخي ماده کي راوړی دئ:

زر ســـل شـــپږ نـــوي کلونـــه
د هجـــرت تېـــر شـــوي وونـــه
مـــا انـــشاء د عـــشق دېـــوان کـــړ
پـــه پـــښتو مـــي ښـــه بیـــان کـــړ
(۲۰۳مخ)

٭٭٭

## د شمس الدین کاکړ په کلام کي

شمس الدین کاکړ هم په غیرمنقوط صنعت کي یوه غزله ویلې ده

**چي مقطع ئې داسي ده:**

هر کلام که د مسلم کړي ملال عطر

معطره کړه اسـلام د سـاده لوح

**(۲۸ مخ، د کابل چاپ)**

**حل: دا معماحل غواړي. زما سد کار نه پکښې کوي.**

***

**د "ر" رديف د يوې غزلي مطلع داسي ده:**

چي به اشنای خـوله ورکوله "شـمس الدين" به نه کړه

اوس په خواست غواړي (ب) و (و) و (س) و (ه) د دلبر

(۳۹مخ)

**حل:**

**ب + و+ س+ ه = بوسه**

***

**ده هم د خپل دېوان د بشپړېدلو تاريخي ماده ويلې ده:**

لـه تاريخـه د هجـرت

کـړم و تـا تـه روايـت

د هجـرت کلونـه ثـه وو

دوولـس سله دېـرش اتـه وو

مـا تمـام دوهـم دفتـر کـړ

تـر اول مـي مختـصر کـړ

(۱۶۹مخ)

***

## د صديق په کلام کي

**صديق د (ې) رديف په يوه غزله کي وايي:**

تا خـــو زه یار ته خس کـــړی وم غـــمازه!
خدای تر ما نه ته پخوا شپږ سو شپیته کړې
(۲۳۹ مخ)

**له (۶۶۰) څخه مراد (خس) دئ. (خ = ۶۰۰ + س = ۶۰ = ۶۶۰)**

***

# د سعید په کلام کي

**سعید د (سرفراز، عبدالقادر او محی الدین) په نومو د خپلو زامنو یا لمسیو په یاد سوي غلبلې لري. د ده د کورنۍ دا درې ګلان یو په بل پسې تاندلباند سوي دي. د محی الدین په مرثیه کي وایي:**

دِمـازړه! (دا) څـه (عجبـه) غمکـده یـې
لکــه زلفــي د بتــانو شکــسته یـــې
غــم پــه غــم بانــدي پتــا متــواتر دی
پـه دا هو مره غم لـه ژواک سره بسته یـې

.......

پــه انــدوه د ســرفراز لا نــه ... نــه وې
د عبـدالقادر پــه غــم بیــا مــا لیــده وې
پسې غم د محی الدین جانکاه گرفت کړې
پــه دا درې غمــو عجبــو خمیــده یـــې

......

پـه اتــه میاشـتې دوه ورځـې وې دپاسـه
ځویـه! تـه چـه لـه دنیـا نـه رمیـده یـې
په دوه داغـه دِ دریم کښېیښ پـه زړه مې
د هجـرت پـه زر سـل تللـی پـه هـژده یـې

دِ ذوالقعده په لسم دي تولد وه
دوولسم صبح رجب کورد ایزده؟ یې
(دیوان: ۱۲۰مخ د همېش خلیل چاپ)

**په دې شعر کې دا څو نېټې سته:**

**محی الدین د مرګ پر وخت د اتو میاشتو او دوو ورځو عمردرلود.**

**په ۱۱۱۸ هـ ق کال د رجب په دوولسمه مړ سوی دئ.**

**زېږېدنه ئې د ذوالقعده میاشتې پر لسمه پېښه وه.**

* * *

**د عبدالقادر په ویرنه کې وایي:**

برېښنا شان عبدالقادر راته عیان شه
د اجل په ابر بیا هسې پنهان شه

.......

سرفراز مي عین د زړه په سر تصویر دی
اوس تازه ترې احاطه د ده ارمان شه

.......

د جمعې په شپه ئې راغله په جهان وه
هم په شپه بیا د جمعې د ګور مهمان شه

.......

د رجب په پنځویشتم دا نور سعید لید
د شوال په نولسم ګور ته روان شه
(۱۳۳مخ)

**په دې ویرنه کې راته وایي چې:**

**عبدالقادر د رجب پر (۲۵مه) د جمعې په شپه زېږېدلی وو.**

**د شوال پر (۱۹مه) د جمعې په شپه مړ سوی وو.**

کال ئې هماغه دئ چي د ده نور بچيان يا لمسيان پکښې مړه سوي دي او ده په تېره مرثيه کي (۱۱۱۸هـ ق) بللی دئ.

***

په يوه بله غزله کې (د محی الدين ويرنه) ويلې ده:

د ښادی دَر ئې همېش په ما مسدود کړ
په مين ئې له ما تا غوندي مفقود کړ

........

د وروستی خوراتويشتم شپه د جمعې وه
چه دِ تا سره خلاف حيات عهود کړ
دا دِ کال دی د وفات "دميدی غمی"
چه سعيد زړه له ښاديو ناخوشنود کړ

(۸۰ مخ)

په چاپي دېوان کي تاريخي ماده (دميدبې غمې) ليکل سوې ده چي ناسمه ده. سم شکل ئې (دميدی غمی) فارسي جمله ده، چي ابجدي ارزښت ئې (۱۱۱۸هـ ق) کېږي. په دې ډول:

| | | |
|---|---|---|
| د | = | ۴ |
| م | = | ۴۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| د | = | ۴ |
| ی | = | ۱۰ |
| غ | = | ۱۰۰۰ |
| م | = | ۴۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| ټول | = | ۱۱۱۸ |

په اوله مرثيه کي شاعر ويلي دي چي دا درې واړه بچيان يو په بل

پسې (متواتر) مړه په يوه کال کې سوي دي.

محی الدين نومی بچی ئې د ۱۱۱۸ هـ ق کال د وروستی خور (جمادی الثانی) پر (۲۸مه) د جمعې په شپه مړ سوی دئ.

***

## د ابوالقاسم په کلام کي

د ابوالقاسم د چاپي دېوان (ترتيب او مقدمه د قلندر مومند) په (۲۰۸ مخ) کي د غير منقوط ادبي صنعت دوې غزلي لري او ځرگنده خبره ده چي د دواړو په مقطع کي ئې خپل نوم (ابوالقاسم) نه دئ راوړی.

اوله مقطع داسي ده:

درد ِ دل لره دارو دَ دلدار وصل
ولې کله دارو کا له ما کا عار

حل:

د دې معما حل ما (هوتک) داسي موندلی دئ:

د "درد دل" له پاره دارو (لِقاء = ديدن) دئ. له (لِقاء) سره تړلی جزء شاعر د "دلدار وصل" بللی دئ. د "وصل" مستلزم (بوس = مچېدل) دي. د (دل) په قرينه بايد (لقاء) د (بوس) زړه ته ورواچول سي چي (بولقاس) ځني جوړ سي. شاعر وايي چي د (دارو) په وخت کي دلدار له (ما) څخه عار کوي (شرمېږي). د شرمېدلو مستلزم عمل (پټېدل) دي، يعني دلدار په (ما) کي ځان پټوي. شاعر دلته يوه بله قرينه هم راکړې ده او هغه د (دل = قلب) قرينه ده. قلب سرچپه کولو، معکوس کولو ته وايي. (ما) چي معکوس سي (ام) کيږي. (بولقاس) چي په (ام) کي پټ سي، معنا يو توری ئې سر ته او بل ئې پای ته ولوېږي. په دې ډول الف د (بولقاس) سر او (م) ئې بايدپای ته ولوېږي. چي په دې ډول (ابولقاسم)

ځني جوړېږي.

زه منم چي دا د نوموړي معماد حل ډېره سخته لار ده. هيله ده ښاغلي لوستونکي ئې اسانه حل هم ومومي.

* * *

دوهمه مقطع داسي ده:

سر د هر مرام وصال سـره له مـــهره

هسې طمع کړم که سر دې دا مرام کړ

حل: حل ئې لوستونکو ته پرېږدم.

* * *

## د ميافقير الله صاحب په کلام کي

ميا فقير الله صاحب د (فوايدفقير الله) په پای کي کښلي دي:

چـې نـادر راغـی کابـل تـه

هندوستان و تخـت نيـول تـه

"جن خراب شد" يې تاريخ شه

پـه دوزخ کـې بيـا پـه سيخ شـه

پـه کابـل کـي دی مقـامؤ

د ډيلـی پـه سـرانجامؤ

زر سل او سل يـو پنځـوس يـاره

وه سـنه اې برخـورداره

د ربيـع الثـانی خوبـه

تـاريخ نـولس ؤ محبوبـه

چـی تمـام دغـه کتـاب ؤ

نمـازيگر پـه ځـای آفتـاب ؤ

دا کتـــاب چـــې مـــې تمـــام کـــه
مـــسمی مـــې پـــه خپـــل نـــام کـــه
چـــې زه ولاړ شـــم و عقبـــی تـــه
پـــسته نـــوم مـــي وي حیاتـــه
(فوایدفقیرالله: ۱۰۳مخ)

په دې نظم کې دوې تاریخي مادې راغلي دي. یوه د نادر افشار د وژل کېدلو نېټه چې په (جن خراب شد) کې شوول سوې ده او ابجدي ارزښت ئې ۱۱۶۰هـ ق راوزي او بله د کتاب د بشپړېدو نېټه چې د۱۱۵۱هـ ق کال د ربیع الثانی ۱۹مه ورځ ده. شاعر وایي چې په دغه کال نادر کابل ته هم راغلی وو.

د ادبي ستوري ښاغلي مؤلف ته د میا فقیرالله صاحب د همدغه اثر کومه خطي نسخه په لاس ورغلې ده او پر هغې ئې د (کیمیای سعادت) خیال کړی دئ او د شاعر نوم ئې (فقیر) بللی دئ؟ او دا ټولي خبري ئې په ادبي ستوري لومړي ټوک کې کښلي او خپل حدسیات ئې هم پر زیات کړي دي. د ادبي ستوري د دغي برخي (۱/۹۳، ۹۷مخونو) مطالب سهي نه دي او استناد باید په و نه سي.

* * *

## د حاجي جمعه بارکزي په کلام کې

د حاجي جمعه بارکزي په دېوان کې راغلي معماوي علامه رشادرحمة‌الله‌علیه حل کړي دي او زه به ئې د دغه دېوان له سریزي (۷ مخ) څخه رانقل کړم.

علامه مرحوم کښلي دي چې: "د حاجي جمعه بارکزي په دېوان کې دا غزله د ابجدي معماوو څخه ډکه ده":

مـا نـن د ورا دوه سـويو ولس پـه ښـه شـان وليـده
دوه سو اويـا[۱] رنگـه مـې سپين تنـدی تابـان وليـده
شپږ سـو ثلو ېښت ئـې پـه مثـال لكـه مـشال بلېـده
پو نـسو پنځوس رنگـه مـي ځـان بانـدي بريـان وليـده
شـپږ سـو نـوي ئـې لكـه سـل اووه ښـكاريږي خلكـه
يـو سـل پـنځلس مـي پـه وصـف كـي گويـان وليـده
شپېته ئې دي لكه ثلو ېښت چي د ثلو ېښت وكاږې[۲]
سـل نـه مـي ټـول تـر دوه سو يـو د پرشـو تابـان وليـده
د درې اتيـا وو آبـداري ئـې ترسـل د پرشـو زياتـه
اوه سـو يـو مـي د ثلـور د پرشـو پـه شـان وليـده
"جمعه" يو زر اووه سو د پرش جوړه پر شپږپنځوس كړه
پـه خلاصـول كـي مـي درمانـده عـاقلان وليـده
(ديوان: ۱۰۸مخ)

حل:

**د مطلع د اول نيم بيتي له (۲۱۱) ثخه مطلب (يار) دئ.**

**د مطلع د دوهم نيم بيتي له (۲۷۰) ثخه مراد (لمر) دئ.**

**د دوهم بيت له (۶۴۰) ثخه مراد (مخ) دئ.**

**له (۵۵۰) ثخه مراد (فتنگ = پتنگ) دئ.**

**د دريم بيت له (۶۹۰) ثخه مراد (سترگي) دي.**

**له (۱۰۷) ثخه مطلب (گولان = گلان) او له (۱۱۵) ثخه مراد (بلبلان) دي.**

**د ثلرم بيت له (۶۰) ثخه مراد (دهن = خوله) ده.**

---

[۱] په چاپي متن كي "دوه سو اوه اويا" دي.
[۲] دا بيت له متن ثخه پاته سوی دئ.

له (۴۰) څخه مراد (اطل = خالیگاه) د میم د الغې (حلقې) تش ځای دئ.

له دوهم (۴۰) څخه مراد (م "میم") دئ.

له (۱۰۹) څخه مطلب (دندان ) دي او له (۲۳۱) څخه مراد (گوهر) دي.

د پنځم بیت له (۸۳) څخه مطلب (لبان) او له (۱۳۰) څخه مراد (لعل) دئ.

له (۷۰۱) څخه مراد (پاریشاني زلفي = پرېشاني زلفي) دي او له (۳۴) څخه مطلب (جال) دئ.

د مقطع له (۱۷۳۰) څخه (غذل) راوزي چي د (غزل) ناسمه لیکنه ده. خو علامه رشاد کښلي دي چي "کېدای سي دا نیم بیتی داسي وي: جمعه یو زر او اووه دېرش جوړه پر شپېړپنځوس کړه. له (۱۰۳۷) څخه مراد (غزل) ده.

له (۵۶) څخه مراد (مهبوبا = محبوبا) ده.

***

په (۹۱مخ) کي یوه معما داسي ده:

له جفا څخه دي مرمه یو وار زما پر لور صنمه

که رښتیا کړې تېر سو یو زر اتیا واچوه پر سین

دا معماعلامه رشاد مرحوم داسي حل کړې ده:

(د تکملې عمل) ۱۳۸۰ + (سین = س = ۶۰) = ۱۴۴۰

(د عددي تبدی عمل) ۱۴۴۰ = (دَ کرم نظر وکَ)

***

د رنگین په نامه معما:

"واو" و "تې" له "توره" وکاږه چي سپین سي

"قاف" و "سین" ورسره واچوه چي شین سي

پە تصحیف سرې مخ پرې مینځە چې سین سي
معـون ئـې دوه سـو لـس کـە چـي رنگـین سـي
(۱۹۰مخ)

**حل:**

**(د تخرجې عمل) تور ت، و = (ر = ۲۰۰).**

**(د تکملې عمل) (ر = ۲۰۰) + (ق = ۱۰۰) + (س = ۶۰) = (۳۶۰ = شین).**

**(د تصحیف عمل) د شین درې ټکي لوېږي، (سین) پاتېږي.**

**(د تکملې عمل) (سین = ۱۲۰) + (۲۱۰) = (۳۳۰ = رنگین).**

✶✶✶

**د محمدامین پە نامە معما:**

نور دي ټولە پە یوه نیم جانشین سي
جـوړ لـە دغـە یـوه نیمـە بـە امـین سي
بې لـە نهـو بـە ذکـي و تـە تعـین سي
(۱۹۰مخ)

**حل:**

**(د تبدیل عمل) – (یو = الف) + د قلب پە عمل (نیم = مین) = امین.**

**(د تخرجې عمل) – (امین = ۱۰۱) – ۹ = (۹۲ = محمد).**

**ځکە چي دا دواړي معماوي د مسبع پە یوه بند کي راغلي دي، کېدای سي چي "رنگین محمدامین" ځني مراد وي.**

✶✶✶

**بلە معما:**

پە بار بار بە دي حاجي جمعە منت وړي
کە دي دو اتیا مخلوط کړه پە پنځو کي
(۱۵۴مخ)

**په چاپي متن کي اول نيم بيتی داسي دئ:**

**"په بار بار به د حاجي جمعه منت وړې"**

**حل:**

**(د عددي تبديل عمل) – دواتيا = ۴۲۲.**

**(د تکملې عمل) – ۴۲۲ + ۵ = ۴۲۷.**

**(د عددي تبديل عمل) – ۴۲۷ = په مسا[1] دي لبان وا کړه**

*** * ***

**بله معما:**

د جمعه مطلب به هلته د ربنکاره سي

که ته لام ضـــم له "برکوهَ" کـړې دانا

**(۴۱مخ)**

**په چاپي متن کي "مر کوه" دئ.**

**حل:**

**(د عددي تبديل عمل) – لام = ۷۱.**

**(د تکملې عمل) – ۷۱ + (بر کوه = ۲۳۳) = ۳۰۴**

**(د عددي تبديل عمل) – ۳۰۴ = د پير ديدن کَ**

*** * ***

**د حاجي جمعه په دېوان کي ساده معماوي:**

که وصـال د الف قدو دي په کار وي

نور په مينه کي ئې خم لکه ثلور سه

(۱۱۹مخ)

**له ثلور څخه د شاعر مراد (د) دئ.**

*** * ***

---

[1] مسا = وړه خندا چي عربان ئې "تبسم" او پارسيوانان ئې "لبخند" بولي.

"جمعه" پرېږده غیري چاري همېشه کړه
د الف او مـــــیم ثنا په هـــــــر نفـــس
(۶۹مخ)

**د شاعر مراد له الف څخه (الله) او له میم څخه (محمد) دئ.**

٭٭٭

د الف او دال تر منځ چي خوبرویان دي
د الله په نزد مرغـــــوب و امـــین ته یې
(۱۶۲مخ)

**دوهم نیم بیتی په متن کي "د اشنا په نزد مرغوب وامین ته یې" ثبت دئ.**
**د شاعر مراد به له الف څخه (ازل) او له داله څخه (ابد) وي.**

٭٭٭

له ذرې څون سوپنځوس ساتلای نسم
یو څه سختـــــه معـــما سي راته پېښه
(۱۱۹مخ)

**که دا بیت سهي رانقل سوی وي نو داسي ښکاري چي د ذرې معهود في الذهن مقدر "شر" دئ او له څونسوپنځوس (۴۵۰) څخه به د شاعر مراد "تن" وي؟**

**دا وې هغه معماوي چي د حاجي جمعه بارکزي د دېوان په سریزه کي علامه رشاد مرحوم رااخیستي او حل کړي دي.**

٭٭٭

**بل ځای وایي:**

زر یـــو کـــم اتیـــا لـــه غیـــرو څخـــه واخلـــه
ســـرومال نـــور پـــه بـــاقي بانـــدي نثـــار کـــه
د "جمعـــــه" پـــــه معمابـــــه وپـــــوهېږي
که ئې څوک د ابجدو په حساب شمار که
(۱۲۶مخ)

له دې معما څخه علامه رشاد مرحوم د حاجي جمعه بارکزي د قوم ذیلي ښاخ (ګرجي زی) استخراج کړی دئ او لیکلي ئې دي: "زما په خیال کېدای سي چي دغه مطلب د شاعر په دې معماکي هم راغلی وي" (وګ: د دېوان د سریزي اول مخ) د معماحل ئې داسي کړی دئ:

(د تخرجې عمل): (غیره = ۱۲۱۵) - ۱۰۷۹ = ۱۳۶

(د تبدیل عمل): (سرو= الف = ۱)

(د تکملې عمل): ۱ + (مال یعني۱۳۶) + (باقي = ۱۱۳) = (۲۵۰ = ګرجی زی)

علامه مرحوم د "زماپه خیال کېدای سي ..." عبارت په لیکلو سره د دې معما په باب د نوري څېړني لار خلاصه پرې ایښې ده.

ما ( هوتک) د دغي معما په اړونده غزله کي د ځینو قرینو، لکه "سرومال باندي نثار که"، "اصلي حُسن ته لار که" او نورو له مخي په دغه معما کي د شاعر ما فی الضمیر یو مقدس څوک وګاڼه او د دغه حدس په حکم مي د معما حل پخپل فکر داسي وموند:

" غیرو" کلمه د " غیر" کلمې مغیره جمع ده. د " غیر" جمع " اغیار" هم کېدلای سي. دلته له (غیرو) څخه مراد (اغیار) دئ چي ابجدي ارزښت ئې ( ۱۲۱۲) کېږي.

(د تخرجې عمل): (اغیار = ۱۲۱۲) - (۱۰۷۹) = ۱۳۳

(د عددي تبدیل عمل): ۱۳۳ = امامنا (زموږ امام)

* * *

د دېوان په (۱۲۷مخ) کي حاجي جمعه بارکزی وایي:

یو آزار مـــــه کـــړه د زړونو بې حسابه عـــذابونه

په دا کار کي "فی" ولاړه "تا" له "سینه" سره ضم که

دا معما د علامه رشاد مرحوم په حل سوو معماوو کي نسته.

حل:

(د تکملې عمل): (ولاړه فې = فیا= ۹۱) + (تا = ۴۰۱) + (سینه = ۱۲۵) = ۶۱۷

(د عددي تکمیل عمل): ۶۱۷ = دوزخ

شاعر وايي چې په زړه آزارولو کې د (دوزخ) ډېر عذابونه سته.

٭٭٭

دا لاندې څو ساده معماوې هم د علامه رشاد رحمة الله علیه په حل سوو معماوو کې نه دي راغلې او زه (هوتک) به ئې وڅېړم.

د میم مدحه ده لازم تر ابدا
چې حیات ئې کل له رویه سو پیدا
میم ماضي په آینده وو کې ئې نسته
دال دویم پر اوو زمکو پر سما
(۴۳مخ)

حل:

له اول او دوهم میم څخه مراد (محمد) دئ. د (حیات) او (مدح) حاء هم د (محمد) له نامه سره تړلې دي. (د) هم د (محمد) د نامه توری دئ او هم د (دال) معنا (دلالت کول) دي.

٭٭٭

بله:

ضد د وصل له "جمعه" سره وو هلته
پر خاکي آدم چې نوم د عدم پرېووت
(۴۹مخ)

حل:

د (وصل) ضد (هجران) دئ. شاعر وايي چې (هجران) له انسان سره له وخته ملګری دئ چې (خاکي آدم) لا پیدا سوی نه وو.

٭٭٭

بله:

کهښايسته په صورت ډېر، مطلب مي "ت" و "ه" ده
بې تا دلـــبره مينه نه کـــــــوم په (پر) بې و پر لام
(٨٢مخ)

**حل:**

**له (ت) او (ه) څخه مراد (ته) د مخاطب مفرد ضمير دئ. او (ب) و (ل) څخه مطلب (بل) دئ چي په پارسي (ديگر) ورته وايي.**

* * *

**بله:**

"جمعه" ځان تر هر سړي په کښته گوره
چي و نه تړې له مـــــــيمه ســـره نون
(٨٨مخ)

**حل:**

**(م) او (ن) چي سره وتړل سي (من) کېږي. (من) د "خودی، تکبر، هوا" معنا لري چي شاعر ئې د نه کولو توصيه کوي.**

* * *

**بله:**

مقصود نزدې کړه، له مــخي هې کړه
وا و ئې په ميان کي دُرُست د سين که
(١٢٩مخ)

**حل:**

**د (ه) او (س) تر ميان چي (و) راسي، (هوس) ځني جوړېږي. هوس او خوشحالي هغه وخت له چا څخه ځر گندېږي چي (مقصود) ته نزدې سي.**

* * *

## د اخوند کبیر په کلام کې

د حافظ کبیر مشهور په اخوند کبیر مشهور کتاب "معجزات" نومېږي چې د لوی احمدشاه بابا (۱۱۶۰ – ۱۱۸۶هـ ق) د پاچهۍ پر اووم کال ئې په لیکلو پیل کړی دئ:

دی وایي:

پـه شـروع د دې کتـاب شـوم
پـه وکـښو دُر نایـاب شـوم
سن د هجر چې مي شمار کړه
"سوغق" مي ترې اظهار کړه
چې زر سل او شپږ شپېته وو
دا وو تللي نور په تله وو
احمدشـاه بابـا پـښتون و
اووم کـال ئـې پـه رفتـون و
(د افغانستان نومیالي: ۴۴۲/۴مخ)

د "سوغق" ابجدي ارزښت (۱۱۶۶) دئ.

دغه بیان د پښتانه شعراء په ۸۲۵/۳مخ کې هم سته.

زما (هوتک) په کتابخانه کې د "معجزات" یوه خوشخطه نسخه سته چې له بده مرغه د سر او پای له خوا کنډو ده او دغه تاریخي ماده نه لري.

* * *

## د طالب رشید په کلام کې

طالب رشید د (ګل صنوبر) کیسه په پښتو ترجمه کړې او د پېښور

پښتو اکېډیمۍ له خوا نشر سوې ده. دغه چاپ سوې ترجمه اوس زما سره نسته خو د هغې د نظمولو تاریخي ماده به د ارواښاد پوهاند رشتین د (ادبي او تاریخي سمونې) نومي کتاب له ۱۳۹مخ څخه رانقل کړم. پوهاند صاحب مرحوم د کیسې نوم "گل سنوبر" بللی دئ.

د هجـرت وو زر سـل کالـه
څلـور نـوي وربانـدې لالـه
چې پښتو گـل سنوبر شـوه
پـه سـینه کـې مقـرر شـوه

۱۱۹۴هـ ق

ارواښاد پوهاندصاحب زیاته کړې ده چي د دې کیسې په سریزه کي میرشرف خان وزیر د دغي کیسې د نظمولو کال ۱۱۰۴ه بللی دئ او "د (نوې) کلمه ئې د (نور) په شکل لوستې ده.

ارواښاد دا هم لیکلي دي چي د سریزي لیکوال د طالب رشید د نیکه نوم په سهوه سره "اخون عطفي" کښلی دئ چي سم ئې "اخون مصطفی" دئ.

***

# د صدر خان خټک په کلام کي

صدرخان د ادم خان درخانۍ مثنوي د نظمولو نېټه داسي ویلې ده:

سن، یبغا بلبل د لا ؤ
جیم د عمر نن د ما ؤ

(فراقنامه، تعلیقات: ۳۸ مخ)

د دغي مادې ابجدي ارزښت هیوادمل صاحب ۱۱۱۸ هـ ق راایستلی دئ چي گویا تاریخي ماده "یبغا بلبل د لا ؤ" ده او جیم ئې (۵۳) بللی دئ.

دواړه عدده سهي دي. يعني په ۱۱۱۸ هـ ق کال د شاعر عمر دروپنځوس کاله وو.

صدرخان خټک د ادم درخانۍ کيسې په پای کي (د چاپي متن ۱۸۲مخ) دا بيت داسي راوړی دئ:

سـن "يبغـا بلبـل دلا و"
حـم د عمـر نـن ځمـا و
دا کتــاب د عاشـــقانو
چه مـا نظـم کـړو يـارانو

حل:

| | | |
|---|---|---|
| ی | = | ۱۰ |
| ب | = | ۲ |
| غ | = | ۱۰۰۰ |
| ا | = | ۱ |
| ب | = | ۲ |
| ل | = | ۳۰ |
| ب | = | ۲ |
| ل | = | ۳۰ |
| د | = | ۴ |
| ل | = | ۳۰ |
| ا | = | ۱ |
| و | = | ۶ |
| ټول | | = ۱۱۱۸هـ ق |

په دغه کال خپل عمر "حم" بولي چي ابجدي ارزښت ئې (۴۸) کېږي.

د دغي تاريخي مادې ثبت ډول ډول سته. د چاپي (آدم درخانۍ) د ديباچې په (۲۸مخ، چاپ ۱۹۵۹ع پېښور پښتواکيډيمي) کې ثبت داسي دئ:

سن "قيبغاد" بلبل لا وو

"حم" د عــمر نن زما وو

"حم" ته ئې په لمنليک کي کښلي دي چي "په کابل کالنۍ کښې دا مصرع داسې ليک ده: "جيم" عمر نن زما وو.

له "قيبغاد" څخه (۱۱۱۷هـ ق) راوزي او د ديباچې ليکوال محمدنوازخان طائر کښلي دي چي: "... خو د سن هجري د دې کال او د هغه کال چه د هغه د پلار د مرگ نه اتلس کاله وروستو ښودلی شوی دی، تر منځه د يو کال فرق معلومېږي. او اصل تاريخ مشکوک کوي. ممکنه ده چه دا لاندی باندی د يو کال د وروستۍ او د بل کال د وړومبۍ مياشتې د برکته پېښ شوی وي. په کابل کالنۍ کښې د "جيم" په حساب په دغه وخت کښې د صدرخان خپل عمر درې پنځوس کاله او د دې کتاب د لفظ مطابق د هغه عمر اته څلوېښتو کالو ته قابو شوی وو".

د همدې چاپ په متن (۱۸۲مخ) کي بيا "سل يبغابلبل د لا وو + حم د عمر نن ځماوو" ليکل سوی دئ. "سل" چاپي غلطي ده او مراد "سن = سنه" ده.

د تاريخي مادې د ثبت دې ګډوډيو ته ښاغلي حبيبالله رفيع په ادبي ستوري (۳۱۴/۲ – ۳۱۵ مخونه) کي تفصيلي اشاره لري چي همدا مطلب بيا (د صدرخوشحال ژوند او آثار) نومي کتاب په ۳۱مخ کي هم اخيستل سوی دئ[1].

---

[1] د دغه کتاب په (۸۰مخ) کي دغه تاريخي ماده د ټايپيسټ د بې پروايۍ له امله داسي ثبت سوې ده:

سن ينبعا؟ د بلبل ولا وه – جيم د عمر نن دما وه

له دغه تفصیلي بیان څخه ئې نتیجه داسي رااېستلې ده چي د (ادم درخانۍ) منظومه کیسه صدرخان په (۱۱۱۸هـ ق) کال لیکلې ده او دا کال له "یبغابلبل د لا و" څخه راوزي. دغه راز ئې د برېټېش موزیم د ادم خان درخانۍ د نسخې په حواله دوهمه مصرع، ("جیم" عمر نن زما وه) بللې ده او په دې حساب د صدرخان عمر په دغه وخت کي (۵۳) کاله وو. ما (هوتک) چي د برېټېش موزیم د خطي نسخو کتلاک (۱۰۱مخ – د ۱۹٦۵ ع چاپ) وکوت، هورې د دغي تاریخي مادې ثبت داسي دئ:

زاغ حاسـد زغـن جاهـل دي
بلبـل څـوک دردمند عاقـل دي
ســن قیبغــاد بلبلــو لا وه
جــیم عمــر نــن ځمــا وه
دا کتــاب د عاشــقان
چــه مــا نظــم کــړ یــاران

د ادبي ستوري ښاغلي مؤلف د دغي تاریخي مادې د همدې ثبت اوله مصرع "سن قیبغاد بلبلو لا وه" نه ده منلې خو دوهمه مصرع "جیم عمر نن ځما وه" ئې منلې ده. د دوهمي مصرع د منلو له پاره به ئې د کابل کالنۍ ثبت ښایي مِلاک ګرزولی وي.

د ادم درخانۍ مثنوي صدرخان خټک په تقریباً څلوېښتو ورځو کي ویلې ده. دی وایي:

کم وزیاته یو چـله شوه
چه تمامه دا قصه شوه
(۱۸۱مخ)

* * *

صدرخان خټک د (دلی او شهۍ) داستان هم په نظم لیکلی دئ او د هغه د ویلو تاریخ ئې داسي راوړی دئ:

ښه رنګ تم شوه سن ئې دا دی بې اشکاله

"د شــــهۍ دلي قــــصه تمامــه لاله"

**دا نېټه ما (د صدر خوشحال ژونداو آثار) نومي کتاب (۷۴مخ) څخه را نقل کړې ده.**

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| د | = | ۴ |
| ش | = | ۳۰۰ |
| ه | = | ۵ |
| ۍ | = | ۱۰ |
| د | = | ۴ |
| ل | = | ۳۰ |
| ي | = | ۱۰ |
| ق | = | ۱۰۰ |
| ص | = | ۹۰ |
| ه | = | ۵ |
| ت | = | ۴۰۰ |
| م | = | ۴۰ |
| ا | = | ۱ |
| م | = | ۴۰ |
| ه | = | ۵ |
| ل | = | ۳۰ |
| ا | = | ۱ |
| ل | = | ۳۰ |
| ه | = | ۵ |
| ټول | = | ۱۱۱۰هـ ق |

**که د نورو خطي نسخو په شان د دغي تاريخي مادې د "تمامه لاله"**

لیکدود (تمامَ لالَ) وي، نو بیا لس له تاریخي مادې څخه کمېږي.

***

د صدرخان بل منظوم اثر (معجزات) نومېږي چي د بشپړېدو ماده ئې داسي ویلې ده:

دا کتـــاب چــــې آخـــــر تـــم و
مــــاه رجـــب وه دوه ویـــشتم و[1]
څـه خـو یـاد پـه زړه کـښې غـم کـړه
او اظهـــار لـــه ســـترګو نـــم کـــړه
ســـن هجـــري و پــــه ابجــد کــښې
تېربېـــر نـــه شـي پــه عــدد کــښې
دا تـــصنیف صدر خوشـــحال کـــه
توفیـق د رب چــې دی یــې قــال کــه

(د صدر خوشحال ژوند....: ۸٦مخ)

ما چي له پورتني کتاب څخه دغه بیتونه رانقل کړي دي، هورې ئې د معجزات د لیکلو کال نه دئ ښوولی. له دغو بیتو څخه زما په خیال د "سن هجري" او "تېربېر" کلمې تاریخي مادې دي چي له هغوڅخه (۱۱۵۰) لاس ته راځي. زموږ محققینو د صدرخان ژوند تر ۱۱۲۴هـ ق پوري یقیني بللی دئ[2]، که په پورتنیو تاریخي مادو کي زما اټکل سهي وې نو د صدرخان ژوند نور هم اوږدېدلای سي.

---

[1] وایي چي د پښتو اکیډیمۍ په خطي نسخه کښې ئې څه دا رنګ راوړي دي:

زه هـــر ګوره ګناه ګاریم
ســـتا کرم ته امیدواریم
دا کتاب چې آخـــــریم و
ماه روزه وه دوه ویشتم و

[2] هیوادمل – سرمحقق – د پښتو ادبیاتو تاریخ ۱/ ۱۵۸مخ.

***

**صدرخان خټک د خپل پلار یوه درنه ویرنه ویلې ده او په هغې کي ئې د پلار د مرګ تاریخ داسي ښوولی دئ:**

ته مړ په حوت کښې سنه زر سل دویمه خور وه
ورځ جمعه د څــا ښت په وخت دې بیله ســا ده

**(د صدرخوشحال ژوند ...: ۱۹۴مخ)**

**د دغه بیت اول نیم بیتی ناسم دئ. سم شکل ئې ما ته داسي ایسي:**

ته مړ حوت کښې سن زرسل دویمه خور وه

**په دغه شکل کی د بیت د هجاوو شمېر د قصیدې د نورو بیتو په شان (۱۲) کېږي.**

***

# د سکندرخان خټک په کلام کي

**سکندرخان خټک د خوشحال خان خټک زوی دئ. پر مردف دېوان سربېره د (لیلی مجنون) او (مهر و مشتری) مثنوي ګاني هم لري.**

پــه شـلمه د رمـضان پـه جانـه ګـړ کـښې
افـضل خـان سـره یکرنـګ پـه اهتمـام
کـه تـاریخ د سـن د سـال غـوا ړې لـه مانـه
د ابجد پـــه حــروف عـــین و غـــین و لام

( دیوان مرتبه دوست محمدخان کامل – مقدمه: ۱۳ مخ ، ۱۹۶۲ع چاپ)

| | | |
|---|---|---|
| ع | = | ۷۰ |
| غین | = | ۱۰۰۰ |
| ل | = | ۳۰ |
| ټول | = | ۱۱۰۰ |

کامل مرحوم ليکلي دي: "جانه کړ چراټ چاونړئ نه سهيل لويديز لوری ته د حسن خيلو اپريدو (چه په آدم خيلو ورګډيږی) په علاقه کښې دی". زلمي هيوادمل د سکندخان خټک د شمايل نامې او پندنامې په سريزه (۱۲مخ) کي د دغو بيتو په ارتباط کښلي دي چي د خوشحال خان تر وفات وروسته چي د سرداری پر سر د افضل خان خټک او بهرام خان تر منځ کوم جنګونه سوي دي، په هغو کي سکندرخان د افضل خان پر سيله ولاړ وو. په دغو بيتو کي همدې واقعاتو ته اشاره ده.

***

# د قنبر عليخان په کلام کي

قنبرعليخان د تيراه اوسېدونکی وو. د ۱۲۰۷ هـ ق کال په رجب مياشت کي په پېښور کي مړ او هورې ښخ دئ. مردف پښتو دېوان لري[1].

د دېوان يوه نسخه ئې ما (هوتک) په ۲۰۱۲ع کال په کندهار کي (د علامه رشاد په کتابتون) وکتله او دغه ياداښتونه مي ځني واخيستل.

زه قنبرعلي غـــلام يم د حسين
چه شريف عمر کالونه ئې مجيد
(ديوان: ۵۸ مخ)

مجيد = (م = ۴۰) + (ج = ۳) + ( ی = ۱۰) + (د = ۴) = ۵۷.

حضرت حسين عليه السلام د شهادت پر وخت د ۵۷ کالو وو.

***

مـــصطفی د علـــم شـــهر علـــی بـــاب دی
دغـــه بـــاب دی چـــه مفـــتح الابـــواب دی

---

[1] وګ: فرهنګ زبان و ادبيات پښتو: ۱/۳۸۹مخ.

په ابجد کښې پنځه باب دوولس ابواب دي
که دي علم حاصل شوی په حساب دی
د سالک قرب حاصل شي له حجابه
د معبود په ذات قریب د نور حجاب دی
په ابجد دوولس جواب څوارلس حجاب دی
اشارت له دې کلامه د احباب دی
(۱۲۵مخ)

**حل: علامه رشاد د خپل کتابتون د قنبرعليخان د دېوان پر همدغه مخ يو يادابښت ورته کښلی دئ:**

**آل عبا = ۵**

**امامان = ۱۲**

**ابواب = ۱۲**

**حجاب = ۱۴ (چارده معصوم)**

**جواب = ۱۲**

* * *

حجج شمار که په ابجد چارده معصوم دی
دا وینا ده په کتاب کښې مروجَ
(۴۴مخ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| ح | = | ۸ |
| ج | = | ۳ |
| ج | = | ۳ |
| ټول | = | ۱۴ |

* * *

د احـد د یگـانگۍ ئـې حـساب نـشته
د ابجـــد پـــه دیـــارلس دی "احـــد"
دغـه دیـارلس یـو نبي دوولس امـام دي
دوازده امـــــــام آلِ محمــــــــد
(۵۵مخ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| **ا** | = | **۱** |
| **ح** | = | **۸** |
| **د** | = | **۴** |
| **ټول** | = | **۱۳** |

**۱۲ (امام) + ۱ (محمد) = ۱۳**

٭٭٭

# د فهیم په کلام کې

**فهیم په پښتو ژبه نورنامه کښلې ده چې د هغې د نظمولو تاریخ ئې ښاغلي رفیع په ادبي ستوري (۱/۸۹ مخ) کې داسې ثبت کړی دئ:**

چـــې خاتمـــه د نورنـــامې وه
هغـــــه ورځ د عاشــــــورې وه
ســـــنه د هجـــر پـــــه داتـــم وه
پـــه ثلـــور حرفـــه کـــې ضـــم وه
"غین" او "قاف" کړه په شماره
"مـــیم" او "ط" کـــړه ننـــداره

**له دغې تاریخي مادې څخه ئې د نورنامې د لیکلو کال داسې راایستلی دئ:**

غ = ۱۰۰۰
ق = ۱۰۰
م = ۴۰
ط = ۸

ټول = ۱۱۴۸هـ ق

ګويا فهيم دغه نورنامه د ۱۱۴۸هـ ق کال عاشورې په ورځ (د محرم الحرام پرلسمه) نظم کړې ده.

ارواښاد پوهاند رشتين پخپل اثر (ادبي او تاريخي سموني: ۹۴مخ) کي د دغي تاريخي مادې بيتونه "مات و ګوډ" بللي دي او سم شکل ئې داسي ليکلی دئ:

خاتمـــــه د نورنـــــامې وه
اول ورځ د عاشـــــــورې وه
ســـن د هجـــر پـــه داتـــم ؤ
پـــه ځلـــور حرفـــه يـــې ضـــم ؤ
غ او ق تـــــه پـــــه شــــماره
مـــيم او طـــې هـــم کـــړه ورســـره
(۱۱۴۹هـ)

زما (هوتک) په خيال د آخري نيم بيتي "ورسره" بايد د لهجوي تلفظ په اغېزه (ورساره) ولوستل سي.

په دې دواړو ثبتونو کي د کال پر سر اختلاف نسته، يوازي د ورځي پر سر باندي موافقه نه ليدل کېږي. د اروښاد پوهاند رشتين له ثبت سره سم بايد د محرم الحرام اوله ورځ وي.

د محمدفهيم د نورنامې يوه چاپي نسخه (نورنامه کلان) زما (هوتک) په کتابخانه کي سته. په دغه نسخه (۳۱مخ) کي د خاتمة الکتاب تر

**سرخط لاندي داسي راغلي دي چي زه به ئې کټ مټ رانقل کړم:**

نورنامــه مِ پــه پــښتو کــړه
دَ پــــښتون مِ د لوســـتو کـــړه
کــه خطــا پــکښ لــه مــا وی
روره عفـــوه دِ لـــه تـــا وی
چـــه خاتمـــه د نورنـــامې وه
هغـــه ورځ د عاشـــــورې وه
ســن د هجرپـه ا ؟ (پـدا ) تـم وه
پـه څلـور حرفـه کښ ضـم وه
غــین او قــاف کــړه پــشماره
مـــیم او ظ کــــړه ننــــداره
شــکر شــکر کتــاب تـم شــه
بــار د زړه نــه څمــا کـم شــه

....

محمــــد فهیم و تــــا تـــه
زاری کـــړی لـــه حــده زیاتــه

***

# د افضل خان خټک په کلام کي

**افضل خان خټک د علم خانه دانش پښتو ترجمې د بشپړېدلو کال داسي ویلی دئ:**

نصیحت په غوږو کله ځای نیولی د کښو دی
شنوا به پند ترې اخلي، دا کتاب د زمانو دی

که تاریخ ئې له ما غواړئ راشئ واورئ:
"که یې وګورئ یو ګنج د پښتنو" دئ
(په ګلشن روه کي ...: ۳۸مخ)

**حل:**

**۱۱۲۸هـق**

**علامه رشاد رحمة الله عليه کښلي دي: "د دغه نیم بیتي (دی) کلمه په تاریخي ماده کي داخله نه ده، او له دغه امله مشوشه معما بلله کېږي"[1].**

✶✶✶

# د میرزا حنان بارکزي په کلام کي

**د حنان د دېوان په میم ردیف کي د غیرمنقوط صنعت یوه غزله سته چي مقطع ئې د معما په شکل د حنان نوم لري:**

معما مي ده د اسم دوه سَمَکه
حا د دوو سِمَکو سر کړه واَعلَم
(دېوان: ۸۹مخ، د۱۳۸۸ش کال چاپ)

**حل:**

**سِمک په عربي (ماهي، کب) ته وايي. نون ئې هم بولي. د (حا) توري (ح، الف) چي د دوو (نونو) سر سي یعني د یوه نون سر ته (ح) او د بل نون سر ته (الف) ولوېږي، (حنان) کېږي.**

**ح + ن + ا + ن = حنان**

✶✶✶

**بله معما:**

---

[1] د افضل خان په تاریخ مرصع کي زیاتره تاریخي مادې په فارسي ژبه دي او زما د دې کتاب په چوکاټ کي نه سي راتللای.

یــو ایلچـــي راغـــئ لـــه هنـــده دلاوره
ورســـره عجـــب حیـــوان وو بـــرادره
دا حیـوان قـادر جـوړکړئ پـه قـدرت وو
لس ئې خولې او دېرش ئې پښې اتیا ئې سره
(۲۰۹مخ)

**حل:**

**دا معما د (فیل) په نامه ده.**

**(۸۰) = ف + (۱۰) = ي + (۳۰) = ل = فیل**

✶✶✶

**بله معما:**

افلاکونـــه ئـــې پـــه نـــور د جبـــین ونیـــو
درســـت جهـــان ئـــې نبـــوت پـــه نگـــین ونیـــو
پـــر نامـــه د مـــدینې معجـــزه گـــوره
چي "مه" ځیري سوه په میان کي ئې "دین" ونیو
(۲۰۹مخ)

**حل: دا معما د "مدینه" په نامه ده.**

**د "مه" توري چي سره ځیري (جلا) سي او په میان کي ئې "دین" ور ولوېږي، (مدینه) ځني جوړېږي.**

✶✶✶

**حنان د خپل پلار د مړیني درې تاریخي مادې ویلي دي:**

زمـا پـلار محمد حـسن د دیـن پنجـه
خدای دي ورکړي په جنت کښي سرچه
لـه هوښـیاره مـي د مـرگ پوښـتنه وکـړه
راتـه وې ویـل تـاریخ سـو "مرغـی چـه"
(۲۰۸مخ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| م | = | ۴۰ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| غ | = | ۱۰۰۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| چ | = | ۳ |
| هـ | = | ۵ |
| ټول | = | ۱۲۵۸هـق |

* * *

**بله ماده:**

قبله ګاه مې په عمل لکه بيضه
دريا له غشي ئې خلاصه فِضه
هاتفي ئې په وفات کښې دغه ووې
چې تاريخ ئې دا "مقام سو روضه"
(۱۵مخ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| م | = | ۴۰ |
| ق | = | ۱۰۰ |
| ا | = | ۱ |
| م | = | ۴۰ |
| س | = | ۶۰ |
| و | = | ۶ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| و | = | ۶ |
| ض | = | ۸۰۰ |

| | | |
|---|---|---|
| ه | = | ۵ |
| ټول | = | ۱۲۵۸هـق |

٭٭٭

**بله ماده:**

قبلــه گــاه مــي و جــوارتــه د کــريم
ســـــو روان الحکـــــم لله الحکـــــيم
لـه هوښيار ه مـې د مـرګ پوښتنه وکـړه
ول تـــاريخ ئـــې دئ "لــهُ اجــرٌ عظــيم"
(۲۰۹مخ)

**د دې مادې د "اجر" کلمې د سر الف (همزه) په محاسبه کې نه راځي.**

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| ل | = | ۳۰ |
| ه | = | ۵ |
| ج | = | ۳ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| ع | = | ۷۰ |
| ظ | = | ۹۰۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| م | = | ۴۰ |
| ټول | = | ۱۲۵۸هـق |

٭٭٭

**د حنان د ورور (اخوی) "برهان" د مړيني تاريخي ماده:**

د برهــان مــرګ مــي پــر زړه اور بــلاوه
پــه پوښــتنه مــي همــه ځــای لټــاوه

۱۷۴

د وفـــات تـــاریخ ئـــې دا هـــاتفي ووې

"لَدا نـــیم برهـــانَ مـــخ وگـــرزوه"

(۲۰۸مخ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| ل | = | ۳۰ |
| د | = | ۴ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| م | = | ۴۰ |
| ب | = | ۲ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| ه | = | ۵ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| م | = | ۴۰ |
| خ | = | ۶۰۰ |
| و | = | ۶ |
| گ | = | ۲۰ |
| ر | = | ۲۰۰ |
| ز | = | ۷ |
| و | = | ۶ |
| ه | = | ۵ |
| ټول | = | ۱۲۷۷هق |

***

**د "دوران" نومي د مړيني تاريخي ماده:**

د دوران د مرګ خبر مات کړم پر ملا
چې مشفق او مهربان وو پر هر چا
له هوښياره مې د مرګ پوښتنه وکړه
وې ويل تاريخ زر دوه سوه اويا
(۲۰۹مخ)

**د برهان د مړيني کال (۱۲۷۰هـ ق) دئ.**

* * *

**د کندهار د ذاکر شريف د مياجان محمداخند رحمة الله عليه د وفات ماده:**

چې ولي وو د خپل وخت فاني فی الله
نا اميده ئې څوک نه تله له درګاه
يو هوښيار ئې په وفات کښې دغه ووې
دا تاريخ "مياجان محمد رضی الله"
(۲۰۸مخ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| م | = | ۴۰ |
| ی | = | ۱۰ |
| ا | = | ۱ |
| ج | = | ۳ |
| ا | = | ۱ |
| ن | = | ۵۰ |
| م | = | ۴۰ |
| ح | = | ۸ |
| م | = | ۴۰ |
| د | = | ۴ |

ر = ۲۰۰
ض = ۸۰۰
ی = ۱۰
ا = ۱
ل = ۳۰
ل = ۳۰
ه = ۵

ټول = ۱۲۷۳ هـ ق

***

**د سردار مهردل خان مشرقي (۱۲۷۱-۱۲۱۲ هـ ق) په نامه ئې يوه معما د نوموړي سردار په مرثيه کي داسي ويلې ده:**

چي ئې ملا په عبادت لکه دال خم وه
د سکوت مهر ئې پر خوله مزری د دين ولاړ

**حل :**

**د (دال) ملا چي (الف) دئ د (خم) په قرينه ايسته کېږي او (دل) پاتېږي. پر خوله يعني په سر کي ئې (مهر) ورزياتېږي او (مهردل) ځني جوړېږي.**

**د خپل ديوان د بشپړېدلو تاريخ ئې داسي راښوولی دئ:**

په اتمام کښي چي مي وکړ استفسار
عقل وويل تاريخ ئې "اختصار"
(۲۱۰مخ)

**حل:**

ا = ۱
خ = ٦۰۰
ت = ۴۰۰

ص = ۹۰
ا = ۱
ر = ۲۰۰

ټول = ۱۲۹۰هـ ق

***

## د علامه حبيب الله کندهاري (حبواخندزاده) په کلام کي

**علامه مرحوم د پښتو منهاج العابدين په خاتمه کي ويلي دي:**

کتاب شکر دئ تمام شه
نا آرام خاطر آرام شه

.....

تمام پُر له ښو نکتو دئ
له نفيسو مسئلو دئ
د گوهرو خزانه ده
پُر له دُرو يکدانه ده

.....

نوم ئې ښايي چي تعين
شي معراج السالکين
يا "اخلاق التايبين" شي
چي تاريخ ځني مبين شي
مکتوبي حرفونه ياره
له دويمه اسمه شماره
په حساب د ابجد
کړه معلوم د دوی عدد

تېر کلونه له هجرته
په دا شمار و نېک سيرته
(۲۷۷مخ، د ۱۳۴۰ هـ ق چاپ، لاهور)

**د اخلاق التاييين ابجدي ارزښت داسې دئ:**

| | | |
|---|---|---|
| ا | = | ۱ |
| خ | = | ۶۰۰ |
| ل | = | ۳۰ |
| ا | = | ۱ |
| ق | = | ۱۰۰ |
| ا | = | ۱ |
| ل | = | ۳۰ |
| ت | = | ۴۰۰ |
| ا | = | ۱ |
| ی | = | ۱۰ |
| ب | = | ۲ |
| ی | = | ۱۰ |
| ن | = | ۵۰ |
| ټول | = | ۱۲۳۶هـ ق |

* * *

# ثلرم څپرکی

## تعمیې داوسنۍ دورې په ادب کې

**د انجیل د پښتو ترجمې کال:**

د اتمام تاریخ ئې روح په دا شان وویې
" چې انجیل راغی له ربه پر مســـیح"
(په گلشن روه کې دبابوجان ...: ۳۴مخ)

**له دوهم نیم بیتې څخه (۱۸۶۰ع) په دې شرط راوزي چې نیم بیتی داسې ولیکل سي (چِ انجیل راغی لَ ربَ پرمسیح). دغه ترجمه د میجر جورج راورټي تر نگرانۍ لاندې سوې ده.**

***

## د مولوي صالح محمدهوتک په کلام کې

**د خپل نیکه مولوي عبدالرؤف کاکړ (خاکي) د وفات تاریخي ماده:**

شپاړســـمه د شـــوال شـــپه د شـــنبې وه
چې زمـا جـد مغفـور لـه دې جهـان ولاړ
هـم سـنه ئـې د وفـات"جـدمغفور" سـوه
رب دې دی لرې مغفـور چې نـاتوان ولاړ
(پاشلي ویناوي: ۴۹مخ)

**حل:**

**ج = ۳**

**د = ۴**

**م = ۴۰**

**غ = ۱۰۰۰**

**ف = ۸۰**

**و = ۶**

**ر = ۲۰۰**

**ټول = ۱۳۳۳هـ ق**

**مولوي عبدالرؤف کاکړ د ۱۳۳۳هـ ق کال د شوال پر شپاړسمه د شنبې په شپه وفات سو.**

***

**بله تاریخي ماده:**

**د مولانا صاحبزاده صاحب محمدعمرجان اغا غفرله د وفات تاریخي ماده:**

کراچــــي کــــي دا ژړا راڅخـــــه وســــوه
د صـــاحب مرگـــی زمـــا پـــر زړه خنجـــر دئ
د وفـات کـال ئـې (حـاجي مغفـور) وشـمېره
یووېـشتم د ذی الحجـې چـي لـوی اختـر دئ
(پاشلي ویناوي: ۶۲مخ)

**حل:**

**ح = ۸**

**ا = ۱**

**ج = ۳**

**ی = ۱۰**

م = ۴۰
غ = ۱۰۰۰
ف = ۸۰
و = ۶
ر = ۲۰۰
ټول = ۱۳۴۸هـ ق

محمدعمرجان صاحبزاده د ۱۳۴۸هـ ق کال د ذی الحجې پر یوویشتمه د حج ادا کولو پر وخت د موټر په ټکر کې وفات سو.

***

## د ابوالفیض مولوي عبدالغفار بریالي په کلام کې

مولوی عبدالغفار بریالی (۱۳۵۷ش شهید) د کندهار په معاصرو شاعرانو کې د هندي سبک پیرو معلومېږي. د ده په اشعارو کې یو لړ معماوې او تاریخي مادې سته خو له بده مرغه ځیني مشوشې معماوې دي او ځیني به بیا غالباً ناسمې ثبت سوې وي. زه به دلته د ده له چاپي دیوان (اهاړ) څخه ټولې رانقل کړم او هغه چې د حل وړ دي، هڅه به وکړم چې حل ئې کړم او نورې به د لوستونکو پر غاړه ورواچوم.

اوله معما د (بدر) په نامه:

عربـــي فقـــر تـــه لـــږ ورکـــه تخفیـــف
مفتـوح لـس کـه پـه فارسـي سـره سـخیف
که دوه نور باندې زائد کې سې به دوولس
رانـه ورک بـه دوولـس کالـه سـي تکلیـف

(اهاړ: ۱۷۲مخ)

حل:

"فقر" ته چي تخفيف ورکړه سي (ر) پاتېږي.

له (ر) سره چي فارسي لس (ده) مفتوح يعني(دَ) يو ځای سي (دَر) ځني جوړيږي.

پر دغو تورو چي دوه يعني د ابجد په حساب (ب) زيات (زائد) سي (بدر) ځني جوړيږي.

د دغه مطلوب نوم له پاره قرينه "دوولس کاله تکليف ورکېدل" دي او د هغې تاريخي سابقه داسي ده. د اسلام د بعثت د سر دوولس کاله پر مسلمانانو باندي د مکې د کفارو له خوا د تکليف خورا سخت کلونه ول. په دغه زمانه کي لا د جهاد امر پر حضور ﷺ باندي نه وو سوی او يوازي ئې د تبليغ له لاري خلک د حق لور ته رابلل. په دغو دوو لسو کلونو کي پر مسلمانانو باندي تکليف دونده (دومره) زيات سو چي د بعثت پر دوولسم کال له مکي څخه مديني ته هجرت پيل سو. د مکې کفارو په مدينه کي هم مسلمانان پر آرامه پرېښوول او لښکر ئې پر ورووست. د بعثت پر پنځلسم د (بدر) غزا وسوه، کفارو ماته وخوړه او پر مسلمانانو باندي تکليف کم سو.

مولوي بريالي صاحب له دغي تاريخي واقعې سره په ارتباط کي خپله قرينه موږ ته په لاس راکړې ده.

په چاپي مجموعه کي چي دغي معما ته په حاشيه کي کښلې دي: "عربی فقريعنی (لؤس)" د معما له حل سره هيڅ مرسته نه سي کولای بلکي د لاسه لا لوستونکي پر نورو توجيهاتو باندي رهنمايي کوي.

* * *

دوهمه معما د (غفار) په نامه:

د مغزو ماغزه را واخله وچه غوا ده

د صفت په لړمانه کي مدعا ده

لـه ادراکـه سـترګي وکـاږه اشـنايه
"بريـالي" درتــه ليکلــې معمــا ده
(۱۷۲مخ)

**حل:**

**د "مغز" ماغزه يعني د منځ توری (غ) دئ. غوا ته په عربي ژبه (بقر) وايي. چي وچه سي يوازي (ر) پاتېږي. د (صفت) لړمون يعني منځ (ف) ده او د (ادراک) سترګه (ا) دئ. دا څلور توري چي سره يو ځای سي (غفار) ځني جوړېږي.**

**دغي معما ته ئې په چاپي مجموعه کي کښلي دي: "معما کښی مطلب په عربی ژبه قبله راکه په تفصيلی توګه يی تاسی تطبيق کړی شکريه". خو په دې معما کي د قبله له پاره هيڅ راز قرينه او اشاره نسته.**

٭٭٭

**دريمه معما د (علی اسدالله) په نامه:**

يـوه حـرف تـه لبـاس ورکـړه د اسـد
څلـرم سـتوری مـشهور د محمـد
نـازولی نـوکر مـخ ځـي لـه پاچـا نـه
شهنـشاه دئ محمـد نـوکر اسـعد
معمـا ده ډېره سخته کـه حل غـواړئ
پــه صـلوة وربانـدي وغـواړه مـدد
(۱۷۳مخ)

**حل:**

**له يوه حرف څخه مراد (علي) دئ او قرينه ئې دوهم نيم بيتی دئ چي وايي د محمد ﷺ مشهور څلرم ستوری وو. له (څلرم ستوري) څخه مطلب (څلرم خليفه) دئ. دغه حرف ته چي د (اسد) جامه ورواغوستل سي (علی اسد) ځني جوړېږي. (اسدالله) د حضرت علی کرم الله وجهه**

لقب وو. ورپسې دوه بیتونه ټول د حضرت علي کرم الله وجه له پاره د قرینې کار ورکوي. دا چي نازولی نوکر تر پاچا دمخه روان وي او شهنشاه خو (محمد) دئ نوکر ئې اسعد یا (اسد) دئ، مراد ورڅخه دا دئ چي حضرت علي کرم الله وجهه پر حضور مبارک ﷺ ډېر ګران وو. د دغه ناز نتیجه ده چي روافض هغه ته تر حضور ﷺ لا لوړه درجه ورکوي. دغو توجیهاتو معما یو څه مشکله کړې ده ځکه نو بریالی صاحب وایي چي "معماسخته" ده.

* * *

**څلرمه معما د (علی، محمد) په نامه:**

د علـیم حمیـد ویـل حـب شـفا ده
تغافـل ئـې پـه فتحـه د شـین شـفا ده
تر تفریق او جمع وروسته "بریالیـه"
مرداني یار ته حاضر سه لار صفا ده
(۱۷۳مخ)

**حل:**

**شاعر وایي چي د "علیم" او"حمید" ویل (لوستل) او له هغه محبت درلودل (شِفا) ده. (شِفا) د شین په کسره، صحت، روغوالي او تندرستۍ ته وایي. خو که دي له دغو نومونو سره "تغافل" وکړ یعني بې خبري دي ورڅخه وښووله یا دي انکار ځني وکړ، نو (شَفا) د شین په فتحه (زوَر) درته راغله. (شَفا) د شین په زوَر د (مرګي، د عمر د پای) معنا لري (غیاث اللغات). د اهل سنت و جماعت عقیده هم دا ده چي د حضرت علي کرم الله وجهه په باب تغافل روا نه دئ. د ده نوم د جمعو او اخترو د لمانځه په خطبو کي ویل کېږي.**

**د (علیم) او (حمید) پر کلماتو باندي چي د تکمِلې یعني (جمع) عملیه تطبیق سي، (علیمحمید) ځني جوړېږي.**

**بیا چي د تخرجې یعني (تفریق) عملیه پر اجرا سي، وروستۍ (یا) به ځني کمه سي یعني (علی، محمد) به پاته سي.**

**لوستونکي به ووایي چي ولي نو لومړۍ (یا) نه کمېږي. د دې دپاره قرینه (مرداني یار) ده. (یار) دلته د خلیفه په معنا دئ. پښتانه راشدینو خلفاووته (څلوریاران) وایي او (شاه مردان) د حضرت علي کرم الله وجهه لقب دئ چي په یوه پاړسي بیت کي داسي راغلی دئ:**

شاه مردان شیر یزدان قوت پروردگار

لافتی الا عـــلی لاسیف الا ذوالفقار

**له (مرداني یار) څخه مراد حضرت علي (ک) دئ.**

**په چاپي مجموعه کي یوازي یوه حاشیه "حرف یعنی (علی) اسدالله" له معماسره ارتباط لري، نوري حاشیې ئې ټولي زوائددي.**

* * *

**پنځمه معما د (احمد) په نامه:**

یـو د خـدای علـیم حمیـد وایـه سـپاس

بـل د لاسـه نـه لـس لیـري کـه پـه لاس

د هغـه صـدر سـرمد نـوم بـه بیـا مـومې

چي په لیک باندي ئې فخر کړي قرطاس

(۱۷۳مخ)

**حل:**

**سپاس ته په عربي (حمد) وایي. د (لاس) کلمې څخه چي (لس) یعني لام او سین لیري سي، (ا= الف) پاتېږي. الف چي له حمد سره یو ځای سي (احمد) ځني جوړېږي او دا هغه "صدرسرمد" یعني حضرت محمد ﷺ نوم دئ چي په لیکلو ئې کاغذ فخر کوي. د (سرمد) معنا(دایم، همېشه) ده او (قرطاس) کاغذ ته وایي او (قرطاسیه) هم له دغه لغت څخه راوتلې کلمه ده.**

بایدووایم چي په چاپي مجموعه کي د (صدرسرمد) پر ځای (صدرسرحد) راغلی دئ چي تېروتنه ده.

***

**شپږمه معما:**

لس له کاله پوره وړی لمر کندو سو
دېرش ټیکه د اضافت وهي کندو سو
(۱۷۳مخ)

**حل:**

په دغه معما هیڅ نوک نه جګېږي. د ثبت پر سموالي ئې هم شکمن یم. دوهم نیم بیتی ښایي "دېرش ټیکه د اضافت وهي هندو سو" وي.

***

**اوومه معما د (مهدي آخر زمان) د راتګ کال:**

که له نوحه څخه کې زړه د آدم لیري
په هغه کال به مهدي کي حجاب څیري
(۱۷۴مخ)

**حل:**

د (نوح) ابجدي ارزښت (۶۴) دئ.
د (که = ک) ابجدي ارزښت (۲۰) دئ.

د دواړومجموعه (۸۴) کېږي. له دغه مجموعي عدد څخه چي د (آدم) زړه یعني (د = ۴) لیري سي، (۸۰) پاتېږي.

د مهدي آخرزمان په باره کي پخوانیو خلکو د شاه نعمت الله ولي رحمة الله علیه د پېشګویۍ له مخي چي د مهدی آخرزمان په باب ئې ویلي ول: "در هزار وسه صدوهشتادآن پیدا شود"، د څورلسمي هجري قمري پېړۍ اتیایمه لسیزه (۸۰) کال باله. دغه رازپېشګویاني د هغه وخت په فارسي کتابو کي راغلي وې. شاه نعمت الله ولي (۷۳۱ – ۸۳۲هـ ق) د کرمان وو او

په هرات کي ئې هم عمر تېر کړی وو. ځيني کسان ئې د حافظ شيرازي "پيرطريقت"بولي؟ ده په تصوف کي يوه خاصه طريقه چي (نعمت اللهي) نومېږي را ايستلې وه.

شاعر دلته د (مهدي) په باب دغه عنعنوي خبره په معما کي ځای کړې ده.

***

**اتمه معما د (عبدالواحد) په نامه:**

د اختـر لـه دوو څـه يـو صـفر معـدوم کـړه
يـو د زړه پـه زړه پيونـد روح ورمـضموم کـړه
محققــه مطلــب تــام د "بريــالي" ســو
نــوم د عبدالواحــد جان ځنــي معلــوم کــړه
(۱۷۴مخ)

**حل:**

اختر ته (عيد) وايي . د عيد له دوو ټکو څخه چي يو (صفر) معدوم (نېستي) سي، (عبد) پاتېږي.

زړه ته (قلب) وايي او د (قلب) کلمې زړه بيا ( ل) دئ. له دغه (ل) چي (يو = واحد) پيوند سي (ل واحد، الواحد) ځني جوړېږي.

که (عبد) او (ل واحد = لواحد = الواحد) سره يو ځای سي، (عبدالواحد) ځني جوړېږي.

په چاپي مجموعه کي د (صفر) پر ځای (صرف) ليکل سوی دئ او معما ئې ړنده کړې ده.

***

**تاريخي مادې:**

**د کدني د بابک صاحب (سيد عبدالغنی جان اغا) د وفات مادې:**

**په شمسي حساب:**

چهارشنبه دیارلس د حمل وخت سهار
له هیبته رنگ د ورځې اصفرار
پاو بالا شپږ بجې وخت د مصیبت
اسمان توی کړ پر عالم باندې حیرت
دو څلوېښت و دیارلس سوه وه سنه
"یاغفران" ئې په ابجد سوه نمونه
(۲۰۳مخ)

**حل:**

**د (یا غفران) ابجدي ارزښت (۱۳۴۲ه ش) کېږي او دغه د سید عبدالغني جان اغا د وفات کال دئ.**

**په قمري حساب:**

قمري وه دیارلس سوه دو اتیا
بابک رحمة الله علیه ولاړی د اجل په مېلمستیا
په تذکار بې د تاریخ کوي تعلیم
یا واحد یا غنی و یا کریم
یا د نوح له نامه زړه د نوح کړه لیري
د نوحې په سېلاب وړه د سترګو خیري
یادګار هم د تاریخ قمري
مستنبط کړه په حساب شجري
جیم د حا ثه، جیم د واو ه که موضوع
جیم له ها بې له الفه که موضوع
که راتلونکي کال ته غواړې نښاني
ننګوه سیدالناس عبدالغني
(۲۰۴مخ)

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| یا واحد | = | ۳۰ |
| یا غني | = | ۱۰۷۱ |
| یا کریم | = | ۲۸۱ |
| ټول | = | ۱۳۸۲هـ ق |

**بله قمري ماده:**

**له (نوح) لغوي معنا ئې (ژړا کوونکی) ده چي له دې څخه د شاعر مراد خپل ځان (عبدالغفار) دئ.**

**د (عبدالغفار) ابجدي ارزښت (۱۳۵۸) کېږي. له دغه عدد څخه چي د (نوح) زړه یعني (و = ۶) وایستل سي (۱۳۵۲) پاتېږي.**

**د (سیلاب) کلمې یوه سترګه (س، ي) ده او بله سترګه ئې (ا، ب) ده. د شاعر په ژبه چي د دواړو سترګو دغه خیري د (نوحې = ماتم = اوښکو) له امله یووړل سي (ل) پاتېږي. د (ل) ابجدي ارزښت (۳۰) دئ. دغه ارزښت چي پر (۱۳۵۲) واچول سي (۱۳۸۲هـ ق) راوزي او دا د بابک رحمة الله علیه د وفات قمري سنه ده.**

**دغه راز د (سیدالناس عبدالغني) څخه د ابجد په حساب (۱۳۸۳هـ ق) راوزي چي دا ئې د وفات راتلونکی کال دئ.**

**د پورتني شعري ټوټې پنځم بیت ما حل نه کړ. که ئې ثبت همداسي صحیح وي، نو دي ښاغلي لوستونکي ځان پر وګوري او حل دې پیدا کړي.**

* * *

**د شهید مولوي بریالي صاحب د شهادت تاریخي پېښه چي له حج څخه د بیر ته راتلو په وخت کي پېښه سوې ده، د ده یوه خواخوږي دوست ابوالمغفور مولوي عبدالحکیم په یوه اوږده مثنوي کي ویلې ده، چي زه ئې یو څه برخه دلته رانقلوم:**

را رهي افغانستان ته نازنین سو
ورته پټ خلقي ظالم کمین نشین سو
پر میدان د کندهار چي سو معلوم
آماده و انتظار وه د مظلوم
چي راکوز له طیارې سو حق شناس
ظالمانو فوراً ونیوی تر لاس
اجازت ورلره نه سو بالا نور
نه ئې ولیدی قریب، عیال و کور
رباني شیخ الحدیث چي سو مسجون
کندهار له ډېره غمه سو محزون
یو زر درې سوه اووه پنځوس تاریخ
شل د قوس وو پر جانان سو اوقات تریخ
رفقاء ئې راستانه سول یک تنها
سو راتګ ئې و قریو ته په ژړا
(ابو الفیض) ئې برابر بوتی محبس ته
د هوا آزاد مرغه ولاړی قفس ته

......

اغلباً مي پر زړه دا راځي شهید دئ
ربه اِغفِر شهادت ئې پر توحید دئ

(۲۱ – ۲۲مخونه)

* * *

## د علامه رشاد په کلام کي

**د حافظ رحمت خان د شهادت تاریخي ماده:**

"شهادت يې نصيب سو" = ۱۱۸۸هـ ق

(حافظ الملک ...: ۷۶مخ)

**بل:**

چــي شــجاع د پرنگيــانو ســره مــل ســو

مـرور لـه (دې دنيـا) "د خدای رحمت" ولاړ

**حل:**

| | | |
|---|---|---|
| **د** | = | **۴** |
| **خ** | = | **۶۰۰** |
| **د** | = | **۴** |
| **ا** | = | **۱** |
| **ی** | = | **۱۰** |
| **ر** | = | **۲۰۰** |
| **ح** | = | **۸** |
| **م** | = | **۴۰** |
| **ت** | = | **۴۰۰** |
| **ټوله** | = | **۱۲۶۷** |

**له دې مجموعې څخه چې د (دې دنيا = ۷۹) قيمت د مرور په قرينه تفريق سي (۱۱۸۸هـ ق) پاتېږي.**

* * *

**علامه مرحوم د نواب محبت خان يو عربي زبر په پښتو نظم اړولی دئ چي دلته به اصل نظم او ترجمه يو په بل پسې راوړم:**

اذا لــم يبــق فــی الاســلام آثــار

جــری مــن مقلتــی دمــع کانهــار

فقالــت الهــاتف: مــن يظهر الــدين

فجاء الصوت: "سلطان الجهاندار"

**پښتو ترجمه ئې:**

چې د اسلام په ملک کې سوې د اسلام چارې ګرانې
ویالې د اوښکو مې تر سترګو کړې غمو روانې
هاتف مې وپوښتېد چې څوک به زموږ د دین غاور سي؟
ول: په "سلطان الجهاندار" به سي سختۍ اسانې
(حافظ الملک: ۱۳۶مخ)

***

**د علامه حبیبي د وفات تاریخي ماده ئې داسې ویلې دي:**

درېغه، نن د شلم قرن بیروني ولاړ
د افغان ولس له ټوله حبیبي ولاړ

**حل:**

**"د افغان ولس له ټوله" تاریخي ماده ده، ابجدي ارزښت ئې (۱۶۷۳) دئ، د بیروني او حبیبي کلمو ابجدي ارزښت (۳۱۰) چې څنې وباسو (۱۳۶۳) پاتېږي. په دې استخراج کې د تخرجې له عمله کار اخیستل سوی دئ. (ولاړ) ئې په دواړو مصرعو کې د اسقاط (نفی) قرینه ده. (د استادیاد: ۱۴مخ).**

***

**علامه رشاد مرحوم د غالب جنګ بخشي الممالک غازي نواب احمدخان بنګښ د مړیني تاریخي ماده د یوه پښتانه شاعر له خولې رانقل کړې ده خو ما د دوی (د علامه) د کلام په برخه کې راوړه. تاریخي ماده داسې ده:**

د دنیا تر "یوویشت" کالو نوابۍ وروسته
"احمد ولاړی جنتوته" کامراني کړي

**حل:**

**"احمد ولاړی جنتوته" جمله د ابجد په حساب ۱۱۶۴ کېږي د نوابۍ**

**د کلونو شمېر (یوویشت) چې پر زیات سي ۱۱۸۵ ځني جوړېږي. نواب احمدخان بنګښ د دغه کال د لومړۍ خور (ربیع الاول) یا د برات په میاشت کي مړ سوی دئ. (وګ: غالب جنګ غازي نواب احمدخان بنګښ او د هغه کورنۍ: ۱۴۴مخ).**

* * *

**د احمدشاهي کندهار د تاداو ایښوولو تاریخي ماده:**

"دا ښار احمدشاهي کندهار دئ" = ۱۱۶۹هـق

(د کندهار یادښتونه: ۱/۱۲۶مخ)

* * *

**علامه رشاد د سردارمحمد داؤد او د هغه د کورنۍ د وله ییز شهادت جریان په یوه اوږده مرثیه کي ویلی دئ چي "د محمدزیو کربلا" نومېږي او (د افغانستان بدي ورځي) نومي شعري مجموعې په (۳مخ) کي چاپ سوې ده. د دغي مرثیې د پای درې بیته، چي تاریخي ماده پکښې ده، دلته راوړم:**

دا د هغـــو نــــازولو وژلتــــون دئ
ورکـه کـړې چـي ئـې ظلـم هـدیره ده
دوی چـي ولمبـل پـه ډنـډ کـي د سـرو وینـو
د غـــوایي اوومـــه، ورځ ئـــې جمعـــه ده
"شـهادت" چي پـر زیـاتی سي معنـوي سي
یـــو زر درې ســـوه اووه پنځـــوس ســـنه ده

**حل:**

**(یو زر درې سوه اووه پنځوس) صوري تاریخي ماده ده چي د تورو ابجدي ارزښت ئې (۶۴۷) کېږي. د "شهادت" ابجدي ارزښت (۷۱۰) چي پر زیات سي، (۱۳۵۷ه ش) سنه ځني جوړېږي.**

* * *

**د خپل وراره مولانا محمد د شهادت تاریخي ماده:**

تــاریخي مــاده د مــرگ دي" مولانــا " ده
چي"د خدای په رحمت" ستا قدرداني سوه
بـل تـاریخ دي هـاتف ووې: بـې لـه "شـکه"
"علـی خـدای تـه یـې قبولـه قربـاني سـوه"

**د اولي تاریخي مادې حل:**

**(مولانا = ۱۲۸) + (د خدای رحمت = ۱۲۷۴) = ۱۴۰۲هـ ق.**

**د دوهمي مادې حل:**

**(علی خدای ته یې قبوله قرباني سوه = ۱۷۲۷) - (شکه = ۳۲۵) = ۱۴۰۲هـ ق.**

**په شمسي حساب ئې تاریخي ماده داسي ده:**

"ســتر شــهید دئ مولانــا " ملَکــو ووې:
چـي قبـول تـه ئـې د "رحـم" غېـږ خـالي سـوه

**حل:**

**د تکملې عمل: (ستر شهید دئ مولانا = ۱۱۲۱) + (رحم = ۲۲۸) = ۱۳۶۹.**

**د تخرجې عمل: (۱۳۶۹) - (د رحم غېږ = ح = ۸) = ۱۳۶۱هـ ش.**

* * *

**د خپل کشرورور حبیب الله د شهادت تاریخي ماده ئې داسي ویلې ده:**

"د شنبې ورځ د حوت شــلمه" ســـتا د مرگ نېټه ده
د زړگي سر چي دي ترې پرې سي نو د کال شمېره ده

**حل:**

**(د شنبې ورځ د حوت شلمه = ۱۳۶۸) - (د زړگي سر = ز= ۷) = ۱۳۶۱ش.**

* * *

## د خالق رشید په کلام کي

**د ډاکټر زیورمرثیه:**

**پوهاند دوکتور زیورالدین زیور په ۱۳۹۰ش کال مړ سو. استاد دوکتور خالق رشید ئې د مړيني تاریخي ماده ویلې ده:**

د اغیار مخ کې راته او ښکه په سلګو واوښته
د پښتو ناوې بې زیوره په مرګو واوښته
له "غرش" "علي" کم شو د خدای په امر[1]
اروا یې واولته په سپینو فرښتو واوښته

**که زما (هوتک) اختیار وای، ما به د څلوریځي دریم نیم بیتی داسي اړولی وای:**

"علي" راولوېد، له "غرش" څخه د خدای په امر

**په دې ډول به له یوې خوا د شعر سکته ورکه سوې وای او بل به تاریخي څلوریځي یو څه معمائیت موندلی وای او هغه دا چي (راولوېد) به د تخرجې علمیې له پاره د قرینې کار ورکړی وای.**

***

## زما (هوتک) په کلام کي

**ما اوله معما د (قیوم) په نامه جوړه کړې ده. په باختر آژانس، پښتو څانګه کي مو له متین خوږیاڼي سره د شعري صنایعو په باب بحث کاوه، دغه معما مي فی البدیهه وویله. قیوم اتمانخېل زموږ د دفتر پښتونستانی**

---

[1] په حل کې ورته کښلي دي: "غرش" او "علي" تاریخي مادې دي چې له لومړۍ دویمې کمه کړئ د ډاکتر زیور د مړيني کال (۱۳۹۰) ښیي.

غړی وو.

له قوي څخه زړه پرې کړه
او په پښو ئې کړه ورپورې
می بې پایه باندې توی کړه
د اشنا مخ به و گورې

حل:

د (قوي) زړه (واو) دئ، چې ځني پرې سي، (قي) پاتېږي. د دغي کلمې له پښو سره چي (واو) پوري سي، (قيو) لاس ته راځي. له بې پايه (می) څخه مراد (م) دئ، چي له (قيو) سره يو ځای سي، قيوم کېږي.

✶✶✶

د علامه حبيبي د وفات نېټه:

ښايي دا چي ويې بولم د "غم قرن"
"دا حبيب"چي ځني ولاړی حقيقي

حل:

په وروستي بيت کي د (غم قرن) تاريخي ماده ده، چي ابجدي ارزښت ئې ۱۳۹۰ دئ. (دا حبيب) چي ځني ولاړ (کم) سي، ۱۳٦۳ پاتېږي. لوی استاد د ۱۳٦۳ ش کال د ثور مياشتي پر شلمه د چارشنبې په ورځ (۹ شعبان ۱۳۰۴ ق) چي د ۹ می ۱۹۸۴ ع سره برابره ده، وفات سو او په دا سبا کې په شهدای صالحين کي په درناوي سره خاورو ته وسپارل سو. پر جنازه ئې زه حاضر وم.

ټوله مرثيه د۱۳٦۳ ش کال د کابل مجلې په دوهمه گڼه کي، د استاد ياد په مجموعه کي او دغه راز تر ويلو شپاړس کاله وروسته په افغاني شمله نومې مجموعه کي چاپ سوې ده.

✶✶✶

زما د پلار مرحوم د وفات نېټه:

دیارلس سوه شپږپنځوس وه له هجرت څخه اوښتي
په شمسي حساب يې ټول کړ د خپل عمر پاک دفتر
څه بې مهره دنیاګۍ ده څه ظالم خونخور فلک دئ
چې نیازمن وه ټوله ولاړل د مرګي په لوی سفر
سرښته د دنیادا ده چې مرګی به خامخا وي
مړه یې مه بولئ ژوندي دي که په ښه نوم وو نامور
د (معصوم) دا یو څو اوښکي د بابا روح ته هدیه سوې
مغفرت دې وي په برخه په جنت کې يې مقر

**زما پلار ارواښاد حاجي محمود هوتک د ۱۳۵٦ ش کال د اسد پر ۲۲ په کندهارکي وفات سو او پخپله پلرنۍ هديره کي ښخ دئ.**

***

**د مهاجرت په نامه معما:**

په قُرعه چې مې ختلې پردېسي ده
له ژوندونه مزه تللې ده، خواري ده
په پاخه کاڼي مې تول مهاجرت کړ
"لو بې پایه و اوږده سرګرداني ده"

(سرامني اوښکي: ۱۰۵مخ)

**د "مهاجرت" او " لو بې پايه و اوږده سر ګرداني ده" ابجدي ارزښتونه سره يو شی دي او (۶۴۹) کيږي.**

***

**د ارواښاد پوهاند رښتين د وفات نېټه:**

یو لوی ویر مو و کور ته له ناورینه سره ولاړ
محفل د پښتو ژبې له رشتینه سره ولاړ

.........

خاطر مي لټاوه تاريخ (آهونه و درونـد غـم) سـو
چـي قــصر د ادب لـــه شـاه نــشينه ســره ولاړ

**حل:**

**په مقطع کي (آهونه و دروند غم) تاريخي ماده ده چي ابجدي ارزښت ئې ۱۳۷۷ کېږي. پوهاند صديق الله رشتين په ۱۳۷۷ش کال (جمعه ۲۸ نومبر ۱۹۹۸ع ) وفات سو. خدای دې وبخښي.**

**ټوله ويرنه په هغه مجموعه کي چاپ سوې ده چي په ټورنټو کي د روښان خادم له خوا د ارواښاد رښتين د مړيني په مناسبت خپره سوې وه.**

***

**د عبدالاحدخان کرزي د شهادت نېټه:**

لټـاوه مـې وخـت د مړينـي دا جملـه مـي پـر زړه راغلـه
"د شهيدو " له "کاروان "سره سو مـل " عبدالاحدخان "

**حل: وروستۍ مصرع تاريخي ماده ده. په قوسينو کي د داخلو کلماتو ابجدي ارزښت ۱۳۷۸ کېږي، چي په شمسي حساب د ارواښاد شهيد عبدالاحدخان کرزي د شهادت کال دئ. په دې ډول:**

| | |
|---|---|
| **د شهيدو** | **= ۳۲۹** |
| **کاروان** | **= ۲۷۸** |
| **عبدالاحدخان** | **= ۷۷۱** |
| **ټول** | **= ۱۳۷۸ش** |

***

**زما د ماما ارواښاد محمدمحسن د وفات قطعه:**

غيـرت دوه واري سـر ټيـټ کـړ
د محـــسن د مـــرګ پــر کـــال
همـــت ووې، چـــي يـــو کـــم دئ
دا د ده پــــــر حــــــسب حـــــال

حل:

د (غیرت) سر (غ ) دئ ، چي ابجدي ارزښت ئې ۱۰۰۰ کېږي. دوه واره چي سي، نو ۲۰۰۰ ځني جوړېږي او چي يو ځني کم سي نو ۱۹۹۹ پاتېږي او دا د ارواښاد محمد محسن د مړيني کال دئ.

په شعر کي د ارواښاد متوفی د غيرت ستاينه سوې ده او شاعر د (همت) په ژبه وايي، چي دوه واره سر ټيټېده لږ دي، يو وار بل هم بايد ټيټ سي. خو په دې افاده کي ئې د معما په حساب د متوفی د مړيني تاريخي ماده هم جوړه کړې ده.

* * *

د ارواښاد مدير صاحب غلام جيلاني الکوزي د وفات قطعه:

غم، اندوه، وير او ندبه سره يو ځای سول
د مدير جيلاني خان د مرګ په کال
عقل ووې د کال زړه هم دوه وار ډوب سو
نو د شک راپاته نسو هيڅ مجال

حل:

غم (۱۰۴۰) + اندوه (٦٦) +وير (۲۱٦) + ندبه (٦۱) = ۱۳۸۳
د کال زړه (الف) دوه واره = ۱ + ۱ = ۲.

د تخرجې عمليه بايد د (ډوب) کلمې په قرينه اجراء سي. په دې ډول: ۱۳۸۳ – ۲ = ۱۳۸۱

د ارواښاد جيلاني خان د مړيني نېټه:
۱۹ جون ۲۰۰۲ ع = ۲۹ جوزا ۱۳۸۱ ش

* * *

زما د استاد او محترم اکا حاجي عبدالمجيد هوتک د وفات نېټه:

لټاوه مې د مرګ کال ورپسې ورک وم
عقل و زړه فکر و سوچ مې کړل توظيف

ویـل پـر (بـام) د جنت شخول د هر کلي سـو
چـــي (حــافظِ قـــرآن) وروړلـــی تـــشریف

حل:

| | | |
|---|---|---|
| بام | = | ۴۳ |
| حافظ قرآن | = | ۱۳۴۰ |
| | | ۱۳۸۳ ش |

حاجي عبدالمجیدهوتک د ۱۳۸۳ ش کال د حمل پر ۱۹ مه = د اپریل اوومه ۲۰۰۴ع د کراچي په ښار کي وفات او په دا سبا ئې په کندهار کي پخپله پلرنۍ هدیره کي ښخ سو.

* * *

**د علامه رشاد رحمة الله علیه د وفات تاریخي قطعه:**

نـــن پـــر تـــول قلمـــستان دئ د اســـتاد غـــم
پـــر قیتـــول و پـــر خیبـــر و پـــر شمـــشاد غـــم
مجـال نـه راکـاوه اوښـکو، چـي یـې وکـښم
ورځ و کـال، میاشت و سـاعت د دې نـامراد غـم
غمـــشریک راســـره عقـــل ســـو، وې لیکـــه!
پـــه تـــاریخ کـــي د دې غـــم، چـــي دئ هفتـــاد غـــم
قـوم، ولـس، یـاران بـې سره افغـان شـوټ سـو
چـــي نـــازل ســـو پـــرې ناڅاپـــه (د رشـــاد غـــم)

حل:

تاریخي ماده = (د رشاد غم) = ۱۵۴۹

د قوم، ولس، یاران (سر) او د افغان (پښې) = ق + و + ی + ن = ۱۰۰ + ٦ + ۱۰ + ۵۰ = ۱٦٦

د (بې سره) او (شوټ) کلمات د تخرجې عملیې له پاره قرینې دي او

د دې قرينو پر بنسټ بايد له تاريخي مادې څخه (۱٦٦) منفي سي. په دې ډول: ۱۵٦۴ – ۱٦٦ = ۱۳۸۳.

علامه رشاد رحمة الله عليه د ۱۳۸۳ش کال د لېندۍ د مياشتي پر يوولسمه د ۸۳ کالو په عمر وفات سو. خدای دي د ده جنتونه په برخه کړي او د ده د لاري پيروان دي خدای ډېر لري (آمين).

***

**د ميرزا عبدالودود هوتک د مړيني قطعه**

چي مرګی سو د عبدالودود مقدور
کور و کلی راته سو د غم تنور
د وفات تاريخ مي وپوښتی له ذهنه
راته وې ويله لفظ د ئ د (مغفور)

**حل:**

د "مغفور" ابجدي ارزښت ۱۳۲٦ کېږي او دا په شمسي حساب د ميرزا عبدالودود هوتک د مړيني کال دئ. د وفات تاريخي ماده د ارواښاد حاجي عبدالمجيدهوتک استخراج دئ، چي ما د نظم په قالب کي راووست.

***

**د پوهندوی نوراحمد شاکر د وفات نېټه:**

يا خو زما قلم پيدا دئ ژړېدو ته
يا اسمان دئ خښنمېدلی پښتنو ته

........

کندهار راته نهار کړلی غمونو
"پوهندوی شاکر" شامل سو "مرثيو" ته

**حل:**

د ابجد په حساب د وروستي بيت حل داسي دئ: له (کندهار) څخه

چي (نهار) جوړ سي، ک + د = ۲۰ + ۴ = ۲۴ پاتېږي. دا قیمت چي د (پوهندوی شاکر = ۶۰۴) او (مرثیو = ۷۵۶) له قیمتو سره جمع سي، یو زر و درې سوه څلور اتیا کېږي. ارواښاد پوهندوی نوراحمد شاکر د ۱۳۸۴ ه ش کال د مرغومي په ۲۲ مه د پنجشنبې په ورځ = ۱۲ جنوري ۲۰۰۶ ع نېټه د کاناډا په ټورنټو کي مړ سو او په ۱۴ جنوري ۲۰۰۶ ع نېټه د افغانانو په هدیره کي ښخ سو. خدای دې وبخښي.

***

زما د محترم اکا ارواښاد عبدالهادي ریشا د وفات نېټه:

پیدا په شپه و د اختر فنا په شپه د اختر

ول، رالېږئ یې! دا ناره له جنتو وخته

د مرګ و کال ته مې کچکول د هنر وګرزاوه

په صد قاتو یې پَلَه درَنه د ښو وخته

"قلم" خپل سر وروباخښه "محبت" تاج کړ هدیه

د مرګ نېټه یې "غم"، "ژړا" په ابجدو وخته

حل:

غم = ۱۰۴۰ + ژړا=۲۰۸ + ق=۱۰۰ + م = ۴۰ = ۱۳۸۸ ش.

***

زما د مشر ماما نوراحمد صالحي د وفات قطعه:

دا چي پروت په دغه ګور کي دا ګړی دئ

د هر چا له خولې اورم چي نېک سړی دئ

"قطع" یې مه شمېرئ په مړو کي حساب نه دئ

"نوراحمد نوراغا" تل تر تل ژوندی دئ

حل:

**نوراحمد نوراغا = ۱۵۶۷**

**قطع = ۱۷۹**

**د "قطع" کلمه د تخرجې له پاره د قرينې کار هم ورکوي.**

**۱۳۸۸ = ۱۷۹ - ۱۵۶۷**

**نوراغا په ۱۳۸۸ ش = ۲۰۱۰ع کال وفات سو.**

* * *

**د ويښ زلميانو د خوځښت د غړي اروابناد الحاج غلام محی الدين خان زرملوال د وفات نېټه:**

پــه دې ځــو اوښــکو يــې حــق نــه ادا کېــږي
بويــه دا چې (زرملـوال) يــاد سي بې شــماره
د وطــن مينـــي ورکــش کــړ خپلــي غېــرتــه
ويښ زلمــی وو، ســو بيــده پــر خپلــه خــاوره
د يـــارلس ســوه نــه اتيــا يــې د مــرگ کــال وو
پـــه لمريز حـــساب ســـوه دا ســـانده تيـــاره

**۱۳۸۹ش**

* * *

**زما د محترمي مور د وفات نېټه:**

يوه دوه کې کم وه د وفات پر وخت ئې هر څه لرل
"افتخارونــه ازلــي" زمــوږ د ادا برخــه ســوه

**تاريخي ماده "افتخارونه ازلي" ده = ۱۳۹۱**

**دوه چې ځني کم سي، ۱۳۸۹ پاتېږي. زما مرحومه و مغفوره مور حجانۍ بي بي حليمه، چې موږ په کور کي (ادا) بلله، د ۱۳۸۹ ش کال د قوس پر ۲۸مه = ۱۹ دسمبر ۲۰۱۰ع کال د يکشنبې په ورځ د سهار پر څلورو بجو و لسو دقيقو په کندهارکي وفات او پخپله پلرنۍ هديره کي ښخه سوه.**

**تولدئې د ۱۳۴۴هـ ق کال د روژې پر یوولسمه د یکشنبې په ورځ په کندهارکي پېښن سوی دئ. دغه نېټه د مولوي صالح محمدهوتک پخپل قلم لیکل سوې ده.**

* * *

**د دې کتاب د بشپړېدلو تاریخ:**

پــه شــل ورځــو کــي ســو دغــه کتــاب تــم
شـــــپه و ورځ وم و لیکلـــــو تـــــې اړم
په "اتمام" کي مي ئې "دوه قلمه" صرف کړل
پــر آخــر مــي "ســرپوښ" کښېــښاوه ســمدم
مات و گوډ، زیات و کمبوت به پکښې ډېر وي
پردېــسي ده، لاس مــي تــش دئ، نــه یــم گــرم
کــه د ژونــد پــر مېنــه ومــه، رنځــور نــه وم
کمبــوتی بــې بــل وخــت کــړم ورســره ضــم
مــا "ســپېځلي" پــر کتــاب دئ زړه بــایللی
پــر دنیــا بانــدي بــل نــه لــرم صــنم

**حل: (اتمام = ۴۸۲) + (قلم = ۱۷۰) + (قلم = ۱۷۰) + (سرپوښ = ۵۶۸) = ۱۳۹۰هـ ش.**

**(سپېڅلی) زما د نامه ترجمه ده.**

* * *

**د بیلومبي بخوله (۱۱مارچ ۲۰۱۲)**

**مظلوم زنگاوات**

د قــرآن د ســونگ لمبــې لا ســړې نــه دي
چــي اورشــو د پنجــوایي مــو کــربلا ســوه
پــه خــوا اړه خــوب ول بیــده شــپاړس ســرونه
د وحــشي امریکــایي پــه لاس فنــا ســوه

## ۲۰۵

### د "مظلوم زنګاوات" توري ئې تاريخ دئ
### دري برغونه د قيامت که تري جلا سوه

**حل:**

**(مظلوم زنګاوات = ۱۵۰۱) – (قيا = ۱۱۱) = ۱۳۹۰ ش.**

**(برغ) د توري په معنا دئ. د قيامت له دري برغه څخه مراد (ق، ی، ا= قيا) دئ.**

**د ۱۳۹۰ش کال د حوت پر ۲۱مه = ۲۰۱۲ع کال د مارچ پر ۱۱ مه د يکشنبې په ورځ د سهار پر درو بجو يوه وحشي امريکايي افسر د کندهار د پنجوايي اولسوالۍ د زنګاوات په سيمه کي درو ځنګ پر ځنګ کوچنيو کليو ته ورغلی او شپاړس تنه په خوب بيده کوچنيان، ښځي او نارينه ئې ووژل او پر مړو ئې اورونه بل کړل. امريکايي افسر بيرته خپلي قرارګاه ته ولاړ او هورې ئې ځان خپلو نورو افسرانو ته تسليم کړ. دا غمجنه بخوله د نړۍ د زياترو هيوادو مشرانو د وحشت او جنايت په نامه وبلله او ما ئې د واقعې ثبت په پورتنۍ قطعه کي وکړ. دا واقعه د زنګاوات د بيلومبي کلي ته نزدې پېښه سوه. (م. هوتک اوشاوا، انټاريو، کاناډا د مارچ ۱۲مه ۲۰۱۲ع کال).**

# د ليکوال چاپ او ناچاپ آثار

**چاپ سوي اثار :**

۱. سرمني او ښکي – شعري مجموعه – ۱۳٦۹ ل = ۱۹۹۰ ع، کراچي.
۲. پاشلي ويناوي – د مولوي صالح محمد هوتک – سريزه او حاشيې – ۱۳٦۹ ل = ۱۹۹۰ ع، کراچي.
۳. د ميرزا حنان بارکزي ديوان – سريزه، سمون او لغتنامه او خطاطي – ۱۳۷۰ ل = ۱۹۹۱ ع، کراچي.
۴. پوخ کاڼی – پټه خزانه يو واقعيت دئ – ۱۳۷۵ ل = ۱۹۹٦ ع، ټورنټو.
۵. احمد شاهي کندهار – لومړی ټوک، ۱۳۷۵ ل = ۱۹۹٦ ع، ټورنټو.
٦. ميرزا عبدالودود هوتک – ۱۳۷۷ ل = ۱۹۹۸ ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۷. پښتني قبيلې او روايتي شجرې – ۱۳۷۹ ش = ۲۰۰۰ ع، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۸. ښکار او کندهار – ۱۳۸۲ ل = ۲۰۰۳ ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۹. درنه کورنۍ (د علامه حبيب الله کندهاري کورنۍ) ۱۳۸۳ ل = ۲۰۰۳ ع، د علامه حبيبي د څېړنو مرکز.
۱۰. د پولادي امير تر سيوري لاندي، د فرانک مارتين ليکنه، پښتو ژباړه، ۱۳۸۳ ل – د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۱۱. بحرالعلوم د دوست محمد خټک – لومړی ټوک، (سريزه، سمون او حواشي) ۱۳۸۳ ل = ۲۰۰۴ ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۱۲. روڼي شپې – شعري مجموعه – ۱۳۸۴ش = ۲۰۰۵ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۱۳. سل بگړۍ يو پوړنی – د هوتکو ملي، روحاني، علمي ادبي او ټولنيزي څېرې – ۱۳۸۴ د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۱۴. شين سترگي مستخدمين په افغانستان کي. څو قسطه په گوربت مجله کي. په کتابي بڼه ۱۳۸۵ ل، صحاف نشراتي مؤسسه.

۱۵. احمدشاهي کندهار – دوهم ټوک، ۱۳۸۴ ل = ۲۰۰۵ ع، علامه رشاد خپرندویه ټولنه/کندهار.
۱۶. د علامه رشاد د کندهار یاداښتونه، (ترتیب، سمون او لمنلیکونه) ۱۳۸۶ ل = ۲۰۰۷ ع، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۱۷. د عبدالروف بېنوا میرویس نیکه، (سریزه او لمنلیکونه) چاپ: ۱۳۸۴ ل = ۲۰۰۵ ع، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۱۸. پر معیاري ژبه د معیار په ژبه یوه څېړنه، ۱۳۸۵ ل = ۲۰۰۶ ع، علامه رشاد خپرندویه ټولنه/کندهار.
۱۹. د سید جمال الدین افغان تتمة البیان فی تاریخ افغان، د پښتو ژباړې (د محمد رفیق حبیبي په قلم) ترتیب، سمون او لمنلیکونه – ۱۳۸۵ ل = ۲۰۰۶ ع، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۲۰. کندهاري ورونه (کندهاري سرداران)، ۱۳۸۷ش = ۲۰۰۹ع، علامه رشادخپرندویه ټولنه/کندهار.
۲۱. پښتو! ستا میني بوداپیست ته بوتلم، ۱۳۸۷ش = ۲۰۰۸ع، علامه رشاد خپرندویه ټولنه/کندهار.
۲۲. احمدشاهي شهنامه، د متن سمونه، سریزه او لمنلیکونه – پېژندنه او تعلیقات د علامه رشاد، ۱۳۸۷ش = ۲۰۰۸ع، علامه رشاد اکاډیمي، کندهار.
۲۳. د شمس الدین کاکړ دېوان، سریزه او لغتنامه، ۱۳۸۸ش = ۲۰۰۹ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۲۴. د میرزاحنان بارکزي دېوان (بشپړکلام)، سریزه، سمون او لغتنامه، ۱۳۸۸ش = ۲۰۰۹ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۲۵. د لوی احمدشاه بابا دېوان (مشهور په دېوان هرا)، ترتیب او مقابله، ۱۳۸۸ش = ۲۰۰۹ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۲۶. له (Erinn Banting) کاناډایي مېرمني سره د (Afghanistan) نومي کتاب په لیکلو کي مرسته او همکاري، (Crabtree Publishing Co)، کاناډا، ۲۰۰۳ع. دا کتاب په دریو برخو (Culture, Land, People) کي خپور سو، خو پر مطالبو باندي یې په ملګروملتو کي د افغانستان د هماغه وخت استازي مشورو تر دې اندازې پوري سیوری واچاوه، چي د لوی احمدشاه

بابا عکس لا هم پکښې چاپ نه سو او کتاب زما (هوتک) د مشورو اولارښوونو پر خلاف چاپ سو.

۲۷. ادیب شیخ، ۱۳۸۸ل، د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
۲۸. کچکول (د مقالو لومړۍ برخه)، ۱۳۸۹ل، د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
۲۹. کچکول (د مقالو دوهمه برخه)، ۱۳۸۹ل، د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
۳۰. له کندهاره تر اټکه، ۱۳۸۹ل، علامه رشاد خپرندویه ټولنه/کندهار
۳۱. د مخلص کندهاري د کلام لغوي زېرمه
۳۲. د علامه رشاد جغرافیایي یادښتونه – سریزه، ترتیب او کمپوز.
۳۳. پښتو متون سمېدل غواړي (لومړی ټوک)، ۱۳۹۰ل، علامه رشاد خپرندویه ټولنه/کندهار
۳۴. د ناوې دانشور، د کندهار منور، د زنګاوات مخور، ۱۳۹۱ل، علامه رشاد خپرندویه ټولنه/کندهار
۳۵. تعمیې او تاریخي مادې په پښتو ادب کې (همدغه اثر)

## ناچاپ اثار :

۱. د هوتکو نومیالي (دوهم ټوک).
۲. د بې ادبه ادب څېړنه.
۳. پرتلیز کلیز (پرتلیزه کالینداره)، د هجري قمري او عیسوي سنو اړونه او رااړونه.
۴. د غره او د وره (ژوند پېښې).
۵. کچکول، د مقالو مجموعه – ۶ ټوکه.
۶. د افغانستان انتالوجي (۱۰۰۰ مخه) ټایپ سوې نسخه یې د بیهقي کتاب چاپولو په مؤسسه کې خوندي وه. اوس یې حال نه لرم.